January 1974

# کندهار

## اطلاعات او کلتور

د ۱۳۵۲ لمریز کال
د مرغومي میاشت
لسمه گڼه

د تاسیس کال ۱۳۳۹



د هیواد نامتو هنرمند مرحوم استاد بریښناچې د افغاني هنر پر اصالت مین او له نړۍ سترګې
پټې کړې خو د افغاني هنر د اصالت د تبارز د پاره يې داسې آثار پرېښودل چې دده ته ابدیت
ور په برخه کوي. د لته مرحوم د خپل هنري اثر څنګ ته لیدل کېږي

61

# د دولت رئیس او صدر اعظم د مرحوم استاد بریښنا په فاتحه کې گډون وکړ

د دولت رئیس او صدر اعظم ښاغلی محمد داود د جدی پر ۲۸ د مرحوم استاد عبدالغفور بریښنا په فاتحه کښې گډون وکړ او د هغه مرحوم روح ته یې دعا وکړل.

دغه رنگه په هغه فاتحه کې چې پر ۲۸ د جدی د مرحوم استاد بریښنا له مړینې له امله د شیرپور په جامع کې د اطلاعاتو او کلتور د وزارت او د هغه مرحوم د کورنۍ له خوا اخستل کېدل، ښاغلي محمد نعیم، د صدارت عظمی مرستیال ډاکتر حسن شرق د کابینې غړو، عالیرتبه مامورینو او د هغه مرحوم علاقه مندانو گډون کړی ؤ.

د نامتو لیکوال، شاعر، ډرامایست، موسیقی پیوندونکی او نقاش هنرمند جنازه د جدی په ۲۶ په شهدای صالحین کې خاورو ته وسپارل سوه.

د اطلاعاتو او کلتور وزیر ښاغلي پوهاند نوین د مرحوم استاد بریښنا تر ښخېدو وروسته د دغه مرحوم د مړینې په نسبت د دولت د رئیس د زړه خواشیني د هغه وپاته کسانو او د مطبوعاتو ومنسوبینو ته داسې ابلاغ کړه:

زموږ ملي قاید د استاد بریښنا مړینه د هیواد لویه علمي او فرهنگي ضایعه وبلل.

د مرحوم استاد بریښنا د جنازې په مراسمو کې، ښاغلي محمد نعیم، ډاکتر حسن شرق، د کابینې غړو، عالیرتبه مامورینو، لیکوالو او د هغه مرحوم زیاتو علاقه مندانو گډون کړی ؤ.

پوهاند نوین وویل استاد بریښنا یو تکړه لیکوال ؤ چې په خپله خاصه، سلیسه او روانه شیوه او عالي افکارو ئې ابتکاري موضوعات خلق او انشا دول. دی یو فلکلوري او ادبي محقق ؤ چې د افغاني کلتور او فرهنگ پر اصالت یې ایمان درلود او خپل ټول وس او قدرت یې د دې لرغوني خاوري د علمي او هنري ارزښتناکه میراثو او د فرهنگي ارزښتو په څرگندولو کې په کار اچول.

پوهاند نوین زیاته کړه: د استاد بریښنا تاپایه مینې او علاقې د افغانستان د مطبوعاتو، کلتور، فرهنگ او هنر سره هیڅ انتها نه درلوده. گویا دی د هنر، علم او ادب د پاره پیدا سوی ؤ. هغه خدایي استعداد چې ده درلودی بو داسې قدرت ؤ چې په نامرئي ډول یې زموږ د فرهنگ او ادب جریان د پرمختگ او انکشاف لور ته بیوی.

زموږ د فرهنگ، ادبیاتو، فلکلور، نقاشي، او موسیقي امتیازات او اصالت یې څرگندوی او زموږ نوی نسل یې په شعوري ډول باخبره کاوه چې افغاني فرهنگ تیارذا او برتري لري او انکشاف قبلوي نو باید په پوره ایمان او ایثار د هغه د احیا او انکشاف د پاره پاکه او صمیمانه هڅه وسي.

د اطلاعاتو او کلتور وزیر د مرحوم استاد بریښنا کلتوري، فرهنگي او هنري خدمتونه په قدردانۍ یاد کړل او د هیواد د معارف او مطبوعاتو د منسوبینو په وکالت یې خپله د زړه خواشیني د هغه مرحوم وپاته کسانو ته څرگنده کړه.

وروسته د پوهنې وزیر ډاکتر نعمت الله پژواک او پوهاند نوین په گډه د معارف او مطبوعاتو د منسوبینو په نمایندگۍ او د مرحوم بریښنا د صادقانه خدمتونو د قدردانۍ په خاطر د گلو گېډۍ د هغه مرحوم پر مقبره کښېښول.

د اطلاعاتو او کلتور د وزارت اداري رئیس میرسعید بریمن د مرحوم عبدالغفور بریښنا سوانح قرائت کړه.

دغه رنگه غلام علي امید چې د مرحوم بریښنا د شاگردانو څخه دی د افغاني هنرمندانو په وکالت د دغه استاد د مړینې له امله خواشیني څرگنده او د هغه د پاره یې د مغفرت دعا وکړه.

انجنیر عبدالله بریښنا د مرحوم استاد بریښنا زوی زموږ د ستر رهبر د تسلیت له پیغام او د افغانستان د جمهوري حکومت څخه مننه څرگنده کړه. استاد عبدالغفور بریښنا د هغې ناروغۍ له امله چې ورته پیښه سوې وه د جدی په ۲۵ نېټه د ۶۶ کالو په عمر په نادرشاه روغتون کې وفات سو.

# د دولت رئیس ښاغلي محمد داؤد د لوی اختر لمونځ د جمهوري ارګ په جومات کې ادا کړ

د دولت رئیس او صدراعظم ښاغلي محمد داؤد د اختر په لومړۍ ورځ ترغرمي دمخه په لسو بجو د نیکمرغه لوی اختر لمونځ د جمهوري ریاست د ارګ په جومات کې ادا کړ.

د لمانځه په ادا کولو کې د زمونږ د ملي قیام سره د صدارت د مرستیال ډاکټر محمد حسن شرق، د کابینې غړو، د تمیز د عالي محکمې رئیس، د جمهوري اردو پوځي جنرالانو او منصبدارانو او په کابل کې اوسیدونکو پښتونستانیانو هم برخه درلوده. زمونږ ستر ملي مشر او نورو لمونځ کوونکو د افغانستان د زړه ورو خلکو او د اسلامي نړۍ د ترقۍ او هوساینې لپاره دعا وکړه او له لوی خدای څخه یې د افغانستان د ځوان جمهوریت د نیکمرغۍ او ترقۍ هیله وکړه.

د اختر د لمانځه تر ادا کولو وروسته د دولت رئیس او صدراعظم د جمهوري ریاست د ګلخانې ماڼۍ ته ولاړ او هلته یې د هغو کسانو د مبارکۍ مراتب ومنل چې د دوی سره یې د لمانځه په ادا کولو کې برخه درلوده.

د هیواد د مېړنيو خلکو په نامه د نیکمرغه لوی اختر د مبارکۍ په مناسبت زمونږ د ستر قاید پیغام په دغه ورځ ترغرمي دمخه په ۱۱ بجو له راډیو افغانستان څخه خپور شو چې په دې ډول دی:

**ګرانو او درنو وطنوالو:**

د نیکمرغه لوی اختر د راتګ له امله تاسو ټولو ګرانو درنو او خوندورو ته د ځان او خپلو ملګرو له خوا د زړه له کومې مبارکي وایم او د اسپېڅلې ورځې چې د حق او د لوی خدای «ج» د رضا په لار کې د ځان له تېریدلو ارزښت ډېره په نمونه ده د افغانستان او هغه د خلکو د نیکمرغۍ لپاره په او مبارک که غواړم.

په دغه وخت کې چې د نیکمرغه لوی اختر د راتګ کوچنۍ چې د بې وزلو او فقیرو خلکو په مقابل کې خپل مسؤلیتونه او مکلفیتونه په یاد ولرو او د خپلو وطنوالو سره د مرستې او کومک ورورولۍ درس زده کړو.

او هغه لوی وظیفې چې زمونږ د انقلاب بنسټ تشکیلوي هغه د افغانستان د ملت نیکمرغي او اعتلا ده. هغه ملت چې د نړۍ په دې ګوټ کې له افتخاره ډکه ګذشته لري هېر نه کړو.

په پای کې یو ځل بیا د نیکمرغه لوی اختر په مناسبت د افغانستان خلکو، خپلو پښتونستاني او بلوڅو وروڼو او د نړۍ ټولو مسلمانانو ته تبریکه وایم او په ټوله نړۍ کې پایداره او عادلانه سوله غواړم.

**تل دې وي افغانستان - ژوندی دې وي جمهوریت**



**مسئول مدیر: کریم (طالب)**

**اداره: د شهیدانو واټ**

**۱۳۵۳ کال د مرغومي میاشت**

# مطبوعاتي جوایزو ته

# یوه کتنه

دمطبوعاتي جوایزو توزیع کول او دهغو دلایحې تدوین او تنفیذ دجمهوري دولت دستر و مترقي مدفونو څخه یو هدف دی چې دعلم او فرهنګ د توسعې او انکشاف په غرض د و باره احیا سول.

دمطبوعاتي جوایزو لایحه چې داطلاعات او کلتور دوزارت په لارښوونه او دهیواد دنخبه شخصیتونو په ګډه همکاري تدوین شوې ده، که دیوې خوا دعلم او فرهنګ برخزانه اضافه توب راولي نو دبلې خوا هغه استعدادونه په کار اچوي کوم چې راکد او ساقط پاته سوي دي.

هر کندهده چې په دې او اغروکې علم خپل واقعي مفهوم پا یللی ؤ او پر ته له تش تعریف څخه بله څه ورپا ته نه وه، په تیره بیا هنر او ادب ته په ډیره بې اعتنایي کتل کیدل. له دې جهته نو هنري پدیدو خپل ارزښتونه ورځ په ورځ لاسه ورکول او خپل قهقرایي سیر ئې تعقیبوی.

داستعدادونو دانکشاف او نبوغ هیله له منځه تللې وه، څکه نو صرف د تیرو نوابغو او قهرمانانو په نبوغ نازیدلو او بس.

زموږ ګران هیواد چې د تیموریانو یا غزنویانو په عصر کې د تمدن زانګو بلل کیدل، ځو علت یې داؤ چې هغوی دهنر او ادب ارزښت درک کړی ؤ، عالمان، ادیبان او هنرمندان دخاص حیثیت او منزلت څښتنان وه، فنکارانو او کاسبانو ته د قدر په ستر ګه کتل کیدل. څکه نو داسې ورځ په ورځ شخصیتونو تیارز و کی چې دا لرغونی هیواد یې د تمدن مهد و ګرزوی، او دهغه دپاره یې د «عروس البلاد» نوم و ګټی.

دچه مرغه دجمهوري نظام په منځ ته راتګ سره چې دهیواد په ټولو اجتماعي چارو کې یو انقلاب راغی نو د دې انقلاب اغیزه په هنر او ادبیاتو کې هم برملا ښکاري. چنانچه زموږ ملي رهبر په خپله تاریخي وینا کې چې د «افغانستان دخلکو» په نامه خپره سوه، دهنر او ادبیاتو توسعې او انکشاف ته په څرګندو اشاره کړې ده چې دمطبوعاتي جوایزو د لایحې تدوین د دغه انکشاف لومړنی اساسي ګام او دهنري او ادبي طلایي عصر لومړی آغاز بلل کیږي.

دغه علاقه عصر موږ ته دا زیری راکوي چې د دې سپیڅلي خاوري په غیږ کې به بو علي بیا داسې شخصیتونه لکه علامه البیروني او مولانا جلال الدین بلخي چې ځن ورځ په جهاني او بین المللي سویه دهغو قدرداني او لمانځنه کیږي، وروزل سي.

زموږ ګران هیواد تل داسې سرشاره فطري استعدادونه درلودلي او لري ئې خو دغو استعدادونو ته صرف تشویق او ترغیب ته اړتیا لري. دمطبوعاتي جوایزو توزیع کول چې د محترمو لیکوالو دپاره دجمهوري نظام سته ارمغان دی، ددوی دتشویق لومړنی ګام هم بلل کیږي.

موږ د دولت دغه مترقي اقدام ستایو او ددولت څخه خاصه علاقه چې دعلم او فرهنګ سره ئې لري دقدر په ستر ګه ګورو. په دې هم باور یو چې دعلم او فرهنګ دپراختیا په لار کې به دا ډول مترقي اقدامونه تل دوام و کړي.

# استاد برېښنا د هېواد په ادبي او هنري تاریخ کې واقعاً د برېښنا حیثیت لري

د جدي په ۲۵ نېټه د هېواد د هنري او ادبي افق څخه یو ځلانده ستوری ډوب و کړ. دغه ستوري پلوشو نه یوازې د دې سیمې پر تاریکیو پلوشې خپرولې، بلکه

د هغه پلوشې نورو ته هم ابدلي او ملي وې. دا ستوری د هېواد مشهور نویسنده، نامتو هنرمند، تکړه مؤرخ او شاعر، ورزیده کمپوزیتور او ښه رسام، نقاش او

مینا توریست مرحوم استاد عبدالغفور برېښنا و چې په پلوشو سحرانګیزه ګوتو یې د هنر او ادب په ډېره کښې وانما د اعجاز مرحلې ته ورسولی او د داسې فطري

سرشاره استعداد څښتن و چې په هر فن کې یې پوره لاس درلود. د نطاقي څخه نیولې تر ډرامه لیکنې او د کمپوز او تصنیف څخه نیولې تر ډایرکټرۍ پورې په هر فن کې

لاره درلوده.

خو افسوس چې قدرت دا قدردونکی شخصیت په داسې حساسه مرحله کې له موږ څخه جلا کړ چې تر هر وخت

زیات د هنر او ادب د انکشاف شرایط آماده او محسوس دي. که څه هم مرحوم استاد جسماً له موږ څخه جلا شو خو روحاً به د ابدي ژوند ملګری وي او چېرې چې د هنر

نوم اخستل کېږي نو د مرحوم برېښنا نوم به هم هلته په نیکۍ یادېږي.

مرحوم استاد د خلاق او مبتکر مغزو، سحر آمیزو ګوتو

ملي روحیې او پاک ضمیر څښتن و او د دغو صفاتو په درلودلو سره یې داسې ګویا او ابتکاري آثار خلق کړي دي چې د ته ابدي ژوند ورته برخه کوي. دا آثار

ګول پور یالیتي شیوه لیکل شوي دي چې په هغه کې د افغاني فرهنګ اصالت او سوچه والی له ورایه معلومیږي او دا د ده ستر هدف و چې افغاني فرهنګ

احیا شي او هغه ته تیار ژوند ورکړه شي.

## د مرحوم استاد برېښنا د ژوند لنډه حال:

د هېواد نامتو خطاط ښاغلي عزیزالدین وکیلي دده د ژوند حال مفصل لیکلی دی چې هغه په لنډ ډول دلته

راوړو:

د چهارشنبې په ماښپین په داسې حال کې چې د مرحوم برېښنا جنازه یې له کوره د انقلول، کوښښ می وکړ چې

د ده د نامتو ادیب هنرمند د رحلت نېټه د جمل اصولو په قرار راوباسم. او کله چې د (عبدالغفور) د نامه د کلمې داعد دو حاصل می د ابجد په حساب وسنجوه ۱۳۹۳ عدد

د هغه څخه استخراج شوا او مطابق د ارسنی قمری کال دی چې د ده مرحوم د ژ رسوي کال به یو ولسمه میاشت وفات شوه ده او نیک فال او غیبي الهام او امداد دی چې

اوی خدای د هغه د نېکو اعمالو په عوض کې هغه ته عطا کړې او هر چا ته نه میسر کېږي.

هر لنګه چې زما او استاد برېښنا تر منځ فني او

مسلکي دوستي اړیکې د ۱۳۱۷ ش کال څخه شروع او دوام پیدا کړی دی او هغه کتاب چې په ۱۳۳۲ ش کال می د افغانستان د مطبوعاتو د تاریخ په شکله لیکلی دی،

پر علاوه هغه تاریخ چې د ۱۳۴۰ کال را په دې خوا مې د امانیه دورې د تاریخ تر کار لاندې نیولی دی په دغو دواړو آثارو کې د لومړۍ درجه خوره شخصیتونو په لیکې کې یې

د افغانستان د علم، هنر او قام د خادمانو څخه د استاد برېښنا یادت ذکر کړی د دادی د هغه خلاصه دلته راوړم.

استاد عبدالغفور برېښنا د امیر محمدخان زوی دی

چې د ده پیاد محمد علي خان او د هغه د پیر محمدخان او هغه د پاینده خان او د هغه پیاد د حاجي جمال خان

زوی دی.

استاد برېښنا د ۱۲۸۶ ش کال د حمل په ۲۵ مطابق

۱۳۲۵ ق او موافق ۱۹۰۷ ع کال په کابل کې زېږېدلی دی
په ۱۲۹۲ ش کال کې د عاشقان او عارفان علیه الرحمه
د کوڅې په مدرسه کې شامل شو چې وروسته د ترقۍ ښوونځی

په نامه مسمی شو. په امانیه دوره کې حبیبیې ښوونځي ته
داخل شو او په ۱۲۹۹ ش کال کله چې اعلیحضرت غازي
امان الله خان پوښتیر د کابل او کندهار د ښوونځيو ملکان

د علومو او فنونو د تحصیل په غرض د باندنیو هېوادو ته
لیږل نو دده نوم هم په هغه فهرست کې قید وي او خود
۱۳۰۰ ش کال په پسرلي کې د ځوانو نورو ځوانانو سره

د آس په سپرلۍ د غور او هرات له لارې تریوې میاشتې
وروسته شوروي ته ورسېدی او له هغه ځایه المان ته ولاړ.
په المان کې د ښکلو صنایعو ښوونځي ته ورداخل شو.

لومړی د برلین په اکاډمۍ کې او بیا یې په مونشن کې
د نقاشۍ د فن په زده کولو پیل وکې. ځکه چې اعلیحضرت
غازي امان الله خان او سید محمد هاشم خان ته چې ددوی

سرپرست او مفتش و هدایت ورکړی و چې افغاني زده
کوونکي باید یوه فن په زده کولو مقیدنه‌سي اوهر یو
باید د خپل ذوق او استعداد او د هېواد د اړتیاوو سره

سم په تحصیل بوخت سي. د هغه هدایت هر زده کوونکي
ته جرأت ورکړی و چې یو علم او فن زده کړي.
استاد بریښنا د سید محمد هاشم خان په پیشنهاد او

د معارف د وزارت په منظوری د تیف تروت د طباعت
په ځانګړې لومړی په ابادمن او وروسته د لایپسیک په
اکاډمۍ کې مشغول شو او عالي بری لیکونه یې ترلاسه

کړه. په المان کې دده تحصیل تقریباً ته کاله دوام وکې
د ۱۳۰۷ ش کال د لړم د میاشتې په پای کې د افغانستان
د حکومت د هدایت په اساس، ددې دپاره چې افغاني

تعلیم یافته ځوانان باید د هېواد د امنیت په خدمت کې
برخه واخلي، د المان څخه افغانستان ته راوغوښتل شو.
چې دده د راتګ په وخت کې دده لومړی زوی عبدالحبیب

د یوې میاشتې و. استاد بریښنا د خپلې مېرمنې او کوچني
زوی سره د شوروي له لارې هرات ته راغی. هرڅنګه چې
نظم او امنیت ګډوډ سوی و نو دی دوې میاشتې په هرات

کې پاته سو او د د غه وخت د امانیه حکومت د نظامي افسر

په قول ناچاره یې وطن پرېښودی د خپلې ښځې او کوچني
سره یې د روسیې لار په خوله ورکړه.
په ۱۳۰۸ ش کال کې استاد غوښته چې د مزارشریف

له لارې افغانستان ته راسي او د وطن د نجات په لار کې خدمت
وکړي نو د افغاني جنرال قونسل سره چې له تاشکند څخه
مزارشریف ته راغی و، ترمز ته راغی او خپل کهول یې

په تاشکند کې پرېښود. او کله چې د کلفت له بندره څخه
د خپل هېواد خاوري ته داخل سو، د هېواد په وضع کې یو
بل بدلون راغی. خو له هغه ځایه بېرته تاشکند ته ولاړ او

د ۱۳۰۸ کال د جوزا څخه تر د وی پوړی دیوه مشاور
او هنرمند په حیث یې دیوه روسي فلم اخستونکي هیئت سره
قرارداد وکی.

د ۱۳۰۸ ش کال د میزان په (۱۳) د خارجه چارو د وزیر
عطاءالحق له خوا یو ټلګرام په تاشکند کې افغاني
قونسلګرۍ ته ورسېدی او د هغه وخت د حکومت په فرمان

ایکل سوی وه چې عبدالغفور افغاني تعلیم یافته ته دی
خبرورکړه سي څو د روسي الوتکې په ذریعه کابل ته
راسي. استاد بریښنا په د غه وخت کې د کابل د راتګ څخه

ډېر و کړه تر څو چې د میزان په (۲۳) د وطن ترنجات
وروسته د کابل د راتلو نیت وکی او د ۱۳۰۹ ش کال د حمل
په (۱۶) کابل ته راورسېدی. په ذکر سوی کال کې

لومړی د مستظرفه صنایعو په ښوونځي کې د رسم د معلم په
صفت او د کابل د عمومي مطبعې د رسام په حیث په کار شروع
وکړه. په ۱۳۱۰ کې د کابل د ادبي انجمن د غړي په صفت

هم وټاکل سو. او دده د رسامۍ آثار لومړی ځل د کابل
په مجله او د کابل په کالینو کې وطنوال ولیدل. د فاضل
استاد جناب غلام محمد خان ترو فات وروسته (چې په فروفیسر

مشهور و او هغه مرحوم د استاد بریښنا اولین د رسامي
استاد او مشوق و) استاد بریښنا د کابل د ښکلو صنایعو
د ښوونځي د مدیر په حیث مقرر سو.

هرڅنګه چې استاد بریښنا د رسامي او د چاپ په فن کې
ډېر لاس درلود ځکه نو دی د ۱۳۱۸ ش کال د جدي په میاشت
کې هغه وخت چې د مطبوعاتو مستقل ریاست تاسیس سو

د مطبعو د لوی مدیر په حیث مقرر سو.

استاد بریښنا د ۱۳۲۲ ش کال په پسرلي کې د مطابعو د لوی مدیریت د چوکۍ څخه د پوهنې د وزارت د تعلیم او تربیې د ریاست د غړي او د نجات د لیسې د اماني ادبیاتو د ښوونکي په حیث مقرر او په ۱۳۲۵ ش کال کې د نجات د لیسې د آمر په حیث وټاکل سو او د پوهنې د وزارت د خطاطۍ او رسامۍ په چارو کې د ۱۳۲۲ ش کال د جوزا د میاشتې څخه بیا د میزان د میاشتې تر لومړۍ نېټې پورې چې زه بیا د مطابعو د خطاط په حیث مقرر سوم یو ډول سره همکاره وو.

په ۱۳۱۹ ش کال چې د راډیو افغانستان ریاست په امتحاني او وروسته په اساسي ډول په فعالیت شروع وکړه، استاد بریښنا په همغه ریاست کې د موسیقۍ د فني مشاور په حیث کار کاوه او په ۱۳۲۴ ش کال کې د همغه وخت لپاره د عامه کتابخانو د مشاور آمر په حیث وظیفه درلوده، د همغه سره د جدولونو د جوړولو، مهر، عنوانو او د کتابونو د تصنیف په برخه کې همکار وم.

استاد بریښنا په ۱۳۴۴ ش کال کې د راډیو افغانستان د آمر په حیث مقرر او دوه کاله یې دغه وظیفه پرغاړه درلوده او بیا یې ابتکارونو ته لاس پورې کړ او وروسته یې د افغاني مطبوعاتو د اتشې په نامه تهران ته سفر وکړ، هلته اته میاشتې او تر هغه وروسته د ۲۷ کلو وروسته د صنایعو د ښوونځي د آمر په حیث په خدمت بوخت سو.

استاد بریښنا په ذاتي دسیسو عقیده نه درلوده، د هغه عشق او علاقې له مخې چې د خپل مسلک سره یې لرله د هېواد د علمي او هنري فاني شاګردانو سره یې تل مرسته کوله. ما ته یې ویل د مستظرفه صنایعو، تاریخ، ادبیاتو او اجتماعي مسئلو سره مشغولیت زموږ او ستاسې خوراک ګرځېدلی، دی که یې پرېږدو مرو.

استاد بریښنا نه یوازې د رسمي تحصیلاتو او د بالدنیو هېوادو ته د سفر په خاطر ستر هنرمند او د علم وفن مشاور ګرځېدلی و بلکه د ده فطري استعداد، ذکاوت او شوق د ده سره تل ملګري وو چې دې لوړ مقام ته رسولی وو.

هرڅنګه چې پخپله یو ذوق لرونکی، قوي، پاک طینته او عالي مشربه ځوان وو او هرڅنګه چې پخپله قدرمن سړی وو او د علم او فن د حاصلولو او د بې انداره یې پیوند لرل نو د هر اهل فن د لیاقت اثر ته یې په قدرداني کتل او ستاینه یې کوله.

یوه ورځ یې ماته وویل «موږ او تاسې تل د خپلو تېرو خلکو ګیله کوو او هغوی ته به فکر کې یو خو لازمه ده چې لږ څه خپلو ځانو ته هم متوجه سو تر څو سبا موږ د زمانې څخه هېر نه سو.»

په جواب کې مې وویل «که چېرې زموږ او ستاسې آثار محفوظ پاته سي نو هېڅکله به هېر نه سو.»

هرڅنګه چې د استاد بریښنا او د هېواد د نورو سترو خلکو او د علم او هنر پېژندونکو او لیکوالانو د ژوند هرڅنګه والی لیکل کېږي او هغه د تل لپاره پاته کېږي نو یقیناً هرګنده ده چې استاد بریښنا او د هغه په څېر نور کسان هېڅکله نه مري. دی یو ټینګ مسلمان او د هېواد د ډېر ژر ترقي غوښتونکو کسانو له ډلې څخه وو چې د علم او ادب او د هېواد د مطبوعاتو او پوهنې د صادقو خدمتګارانو څخه شمېرل کېږي. خدای بخښلی استاد د ۱۳۵۰ کال د ژمي کې د بیت الله شریف په زیارت مشرف سو. د ده روح تل ښاد او خوښ دی ځکه چې هر وخت د ده قدر او توصیف کېږي.

---

## د لویانو خبري

حقیقي مېړانه د ژوندانه پر سختیو بریالیتوب دی.

«ناپلیون»

هغه وخت کولای سو ادعا وکړو چې نیکمرغه یو، څو د نورو نیکمرغي خپله نیکمرغي وګڼو.

«ادوبک»

غښتلی انسان کار کوي او ضعیف انسان خلکو ته پند ورکوي.

«برنارډشاو»

مور والی د ښځې د کمال او بشپړتیا درجه ده.

«الکساندر دوما»

کار د ژوندانه یعنې حرکت دی.

«ګوېته»

د ښځې قهر د بریښنا په شان بریښي خو څوک نه سوځي.

«ټاګور»

د م-عطايي ليکنه

دريمه مقاله

# په ملي جنبشونو کې د ادبياتو نقش

دمنځنيو پيړيو له اروپه څو به څه اروپا په ديارلسمه پيړۍ کې په حماراو ده ستر کو راوينه سره.

دقرون وسطی جهل او ظلم پر له پسې د سوو او کلونو په دوران کې انساني نسلونه تباه کړل خو يې بخوانی قوت بالا وه.

په لومړي سر کې د لاتينې ژبې له تسلط څخه ايټالوي ژبې ته د آزادۍ بيرغ پورته کړ. که څه هم هغه وخت په ننځيو شرايطو د نشنلزم احساس نه و موجود سوی خو د لاتين پر ضد د ايټالوي ژبې پالونکي د مليت پرستۍ لومړی بشر کړ و.

رنسانس چې د نوي ژوند يا د ادبياتو د مجدد حيات معنی ورکوي د منځنيو پيړيو پر ضد يو حرکت و.

رنسانس د (دانته) (پترارک) او (ليوناردواوينچو) له کار سره شروع کيږي. دا دري ستوري وه چې د منځنيو پيړيو د اروپا دې شپې په وروستيو وختو کې رڼا ليدل

په دغه وخت کې په ادبياتو کې عمومي هغه داسې وه چې د يونان او روم ادبيات بيا را ژوندي کړي. (دانته) د (الهي کميدي) په نامه يو اثر وليکی چې د عصر پر عمومي جريان يې انتقاد کړی و. په دغه اثر کې د دوزخ برزخ او جنت تابلوګانې په داسې ادبياتو ترسيم شوي وي چې په هغو کې په عالي مفاهيمو او مطالب پراته وه.

په دغه اثر کې د داستان قهرمان په يوه ځنګله کې لار ورکوي او په داسې حال کې چې يو وحشي پړانګ حمله پر کوي د يو نوراني سپين ږيري له خوا نجات ورکول کيږي. دا سپين ږيری هغه د ادرانوی او لومړی يې دوزخ ته بيايي بيا يې د برزخ پر لار جنت ته بيايي. دا سپين ږيری نو د قديم روم د معروف شاعر (ويرژل) په نامه ځان ورپيژني او دغه لار ورکي سړي ته وايي چې په جنت کې به دې د قديم يونان شکلي او نامتو شاعري پيلتسي ته بوځم.

لار ورکی په دوزخ کې د خپل وخت د کليسا خلک ويني او په برزخ کې هم نيم ګناکاره کسان ملاقات کوي خو په جنت کې د يونان او روم له يوهانو او فلاسفه و سره ګوري او د هغو سره مجلس کوي بيا نو د بيلتسي په ملاقات سر اوهتی کيږي.

د دانته دا اثر هغه نه لوی تکاليف متوجه کړل څو تر ان پورې يې ارزښت له منځه ولاړ دی تللی او د منځنيو پيړيو د مظالمو پر ضد د مبارزې د يوې ستري وثيقې حکم لري.

فلورانس په دغو وختونو کې يو لوی علمي او تجارتي مرکز و.

په دغه مدني ښار کې د ينګلسی پيړۍ په درهمه نيمايي کې د دې د هنر لوی قهرمانان راوپاڅيدل چې هغه (ليوناردواوينچي، ميکلانژ او رافايل) وه چې د هر يوه څخه داسې هنري اثار پاته دي چې دغې پيړۍ ته يې تاريخي ارزښت ورېخښلی دی.

میکلانژ د ۹۰ کالو په عمر له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې. ده پوره شل کاله د (سنت پیټر) پر کلیسا نقاشي وکړه او په داسې حال کې چې په څنګرانو به څړ پدې د کلیسا پر چت به یې قلم چلاوه.

د کلیسا کشیشانو به ویل چې غیر له لاتیني ژبې څخه بل په هره ژبه چې د علم په باب څه لیکل کیږي هغه په قوله شیطاني وسوسې خلکو ته ورواچوي. کشیشانو غیر له مذهبي تعلماتو څخه نور

هر څه ردول خو کله چې په ایټالوي ژبه لیکنه شروع سوې او دوی به ویل ایټالوي ژبه په دوزخ کې

ویل کیږي خو د وخت منورینو او روښنفکرانو د کشیشانو پروا ونه ساتله او هغه وخت چې ایټالوي

ژبه رواج سوه او په فرانسه کې هم دغسې یو جنبش شروع سو او هلته هم فرانسوي ژبه، وروسته

انګلیسي هسپانوي او وروسته الماني ژبه د لاتیني په مقابل کې راپورته سوه.

دو بو دغې حادثې د منځنیو پېړیو او کلیسا تسلط ته لوی تکان ورکړ او سره له دې چې

کلیسا شدیده مقابله وکړه خو بیا هم کلیسا ناکامه سوه او د رنسانس فرهنګ مخ پر اوچتېدو روان سو.

د فلورانس څخه چې کوم لمرختلی و ورو ورو پر ټوله اروپا وغځېده سو. شاعرانو شعرونه په نوي اسلوب جوړ کړل، یوهانو او لیکوالانو کتابونه ولیکل د تمثیل صحنې جوړې سوې او ډرامو ته پر تمثیل سول.

د نوي اکتشافاتو او اختراعاتو له پاره لاره خلاصه سوه. مثلاً پخپله (لیوناردو داوینچي) چې سربېره پر نقاشۍ

په ریاضیاتو کې هم پوه و د الوتلو په باب یې فکر وکړ او ویل چې داسې آله جوړه یدای سي چې په هغه انسانان په هوا-

والوزي.

دا عجیب سړی به همیشه د طبیعت سره خبرې کولې سوالونه به یې طرح کول او

ځوابونه به یې ورته جوړول.

د رنسانس د دورې په وروستیو وختونو کې دنیې ته سترګې پوره رڼې

سوې دي او په اروپا کې لوی پوهان او هنرمندان راپورته سول مثلاً په انګلستان-کې (شکسپیر) او (ملټن) راپورته کېږي

چې هر یو یې د نوي فرهنګ په ترقي کې اوچته برخه لري.

د شکسپیر ډرامې تر اوسه پوري شهرت

لري او وایي چې دی د انګلیسي ژبې پلار دی. د ده انګلیسي ژبه خورا پر مخ غني کړه. هغه لغات چې شکسپیر په خپلو آثارو

کې استعمال کړي دي شمیر یې ۱۲ زرو ته رسېږي.

د شکسپیر په آثارو کې هم د لرغوني

تمدن او زمان دورا معلومېږي او ضمناً د انګلیس د هغې ورځې ټولنې ته پخوانیو مصائبو او بدبختیو څخه د عبرت یوه

وسیله وه.

د رنسانس دوره په عمومي ډول د کلیسا او منځنیو پېړیو پر ضد یو حرکت و چې د نوي فرهنګ او ژوند او فرهنګ تر منځ جګړه هم ورته ویل کېږي او د مطلب لنډیز دادی چې د نوي فرهنګ پر هغه ژوند او فرهنګ غلبه

موندې او اروپا د کلیسا له جادو او د منځنیو پېړیو له چپاول څخه نجات موندی.

---

# مات لوښی

ای محبوبې!
تا چې د ګلانو لوښي ته لاس
وروړه دی دې لوښي کې ډېرې درز
څرګند شو....
اما، هو داسې ښکاره کېده
لکه تا چې هیڅ لاس نه وي وروړه ی
ځکه چې له دې درز څخه د لوښي

هیڅ اندازه نه پر ته کېده..
مګر دې ډېرې درز ورو ورو په ورځ
سو کې سې که پټ تنګه کاوه

خو څه مهال وروسته پر لوښي
شاوخوا او ګرزېدې او څاڅک څاڅک
او به څني بهېده ی.
دې ګلان هم اوبه نیولي څو
وچې شوې.
او هیڅوک نه پوهېدل. آه
لاس مه وروړه د امات لوښي دی
په دا لوښي نه دی، زما خوږمن
زړه دی، چې ذرې ذرې چاودلی دی
او د ستا د محبت ګل پکښې شین دی.

خلک نه پوهیږي چې دا
څنګه....؟
مګر دا ګل زما د زړه په اوبو
وده کوي زما د زړه د درزونه زما
مات زړه. پټ ژړوي نو ګرانې
محبوبې لاس مه وروړه د امات
زړه دی

# ډرامه او افسانه

# دژوند دوهم اړخ دی

## افسانه په تاریخ او تاریخ په افسانه کښې پروت دی

د ډرامې او افسانې په باب دغه لیکلو څخه ترمخه به ښه دا وي چې په خپله دژوند په پراخه لمن کښې څو قدمونه پرمخ او ښت کړو او ددې چمن ننداره و کاندو. ځکه چې ډرامه او افسانه دژوند دوهم اړخ دی. یا دا چې په خپله ژوند ډرامه او ډرامه ژوند دی خو ددوی ترمنځ یوازې دومره توپیر دی چې ډرامه دستیژ پرمخ دلوبغاړو له خوا ښه دانه کیږي او خلک د ننداره کوونکو په حیث ورته ناست وي او دا دا کوونکو کارو ته ګوري، یا داچې پوته ښه دانه کیږي او خلک یې اوري خو لوبغاړي او هنرمندان یې نه شي لیدلای لاکن دژوند د لوبې د پاره نه څوک ناست وي او نه دا فکر کوي چې د خلکو د کارو او ننداره و کښېږي او قضاوت پرو کېږي.

دا بیا بېله خبره ده چې تاریخ د خلکو ژوندانه او کارنامې ساتي او خلکو ته یې وړاندې کوي.

دا وجه ده چې هوګو وایي: «افسانه په تاریخ او تاریخ په افسانه کښې پروت دی» ځکه چې د افسانې او ډرامې سروکار دژوند او د انسانی ټولنو دژوندانه له څه رنګي سره دی نو ځکه وایو چې ژوند څه ته وايي او دهغه تعریف په څنګه کوو.

په دې باره کښې زما نظر په دا ده چې که دژوند تعریف په لغوی یا اصطلاحی ترګه وشي نو دا به هغه داسې عام او جامع تعریف نه وي چې دژوند ټول اړخونه احاطه کړي او دا نو موړي تعریف له مخې دهغه ټول افراد د انسان په تصور کښې و ربښو.

زه وایم چې ژوند یوه داسې کلمه ده چې په وجود کښې یې علم، فکر، اراده، حرکت، او طاقت د افرادو په حیث شامل دي، موږ په مجازی ډول ژوند ته یو صفت ویلای شو لاکن په حقیقت کښې هم دغه د ذات حیثیت لري او دا ذات په یو څو صفتو پیژندل کیږي چې پورته ذکر شول.

البته دلته زموږ مطلب انسانی ژوند په بېلو بېلو او مختلفو اړخونو کښې څه ټول او ځانګړي نتیجې ته رسول دي.

ځکه چې په نړۍ کښې انسانی وجود دارتقا او پرمختګ اخری کړۍ ده نو معلومیږي چې د نړۍ د جوړیدو علت دغه انسان دی او د نړۍ غایه هم پر دغه انسان ختمیږي او دژوندانه لوبه هم په دغه انسان پورې تړلې او مربوطه ده.

کیدای شي چې ځینې خلک زما په دې خبره د اعتراض او انتقاد ګوتې ونیسي او ووایي چې ژوند عام دی (انسانی، حیوانی او نباتی ژوند) ټوله یکښې شاملیدای شي، خو ددې اعتراض مخه ما د مضمون په لومړۍ برخه کښې نیولې او د ژوندانه په کلیه کښې مې علم، فکر، اراده، حرکت او طاقت د افرادو په حیث شامل کړي دي.

ځکه چې د حیوانی او نباتی ژوند په کلیه کښې نوموړي افراد په تکامل توګه شاملیدای نه شي نو له دې کبله له انسانی ژوند سره د پرتله کولو وړ نه دی. او بیا دا چې زما مطلب د انسانی ژوند په پراخه او ژوره لمن کښې د راز راز ښیښو څه رنګي لټول او د انسانی ژوند د طاقت او کمزورۍ ننداره ده.

دا ننداره د نړۍ نه پوهانو، لیکوالو او ډراماپیستانو د راز راز کړې ده چا یې یو اړخ کتلی او دهغې مطابق یې قضاوت کړی دی چا یې بل اړخ ته نظر اچولی او دهغې سره سم یې یو څه ویلي دي.

مطلب دا چې دژوند د اړخونو د رنګ رنګي سره سم د خلکو

نظر یې او قضاوتونه هم نوښتونه دي، چا ته یې شان ښکاره شوی او چا ته یې شان پوهنه دي شاعر په دې

باره کښې خپله نظریه داسې ښکاره کړې ی او دژوندانه په باب یې د اړول قضاوت کړی دی :

«ژوند خوب دی»
شیخ فریدالدین عطار وایې :

باخرد من دوش درسخن بودم
کشف شد بردلم مثالی چند

گفتم ای مایه همه دانش
دارم الحق زتو سوالی چند

چیست این زنده گانی دنیا
گفت خوابیست یا خیالی چند

سپینه څېره خو داده چې د دې مرد و شاعرانو دا قضاوت سم او په ځای دی، ځکه تاسې په ډېرو ځله دا لیدلی دی چې انسان ډول ډول

خوبونه وینې، کله دلیر او او سپینو سره په جنجال اخته کېږي او کله د خپلې بستري سره الوزي

کله ځان په خوب کښې مړ وینې او کله یې ځوک خوږې ستر کې خلاصې کړي بیا هیڅ نه وي او

داډول شیان او پېښې د ده د خپلې مخیلې د نا کراړ یو ژېږ اند نه وي . په دې کښې خو شك نشته چې د

ژوند اړخونه مختلف دي او مختلفې حادثې پکښې پېښېږي، د دې اړخونو د سنجش وقت په سیر او

تحول کښې امکان لري چې انسان د مختلفو کړاوونو او تا و د پیټو سره مخامخ شي .

مه کن کله کله سړی د خپلې مغلوبې احساس و کړي. خو انسان باید دونه کمزوری نه وي چې په اومړي قدم کښې مایوسه شي او د بوه سودایي په څېر لاس

ترزنې کښېنې .
ترڅو ځایه مې دژوند د مختلفو اړخونو په باره کښې یو څه وړاندې کړل

او س غواړم چې په خپل مطلب لاس پورې کړم او په ژوندانه کښې د ډرامې او افسانې ارزښت وښیم .

## دافسانې حقیقت :

دوهمه برخه
محمد یوسف کاکا خېل او عبد

الرؤف او شهرو ، د خپل کتاب (دره ادب) په مقدمه کښې لیکې چې : افسانه څه ته وایې ؟ د پو داسې سوال د چې ځواب یې

ځوك په سانه‌تۍ ور کولای، ځکه چې د افسانې مکمل تعریف ترا وسه په نورو هنوژبو کښې هم سنه‌چې لا څو ب ی پخوا

زمانې دا هیسې پکښې افسانې او د افسانو په شان کیسې لیکل رواج شوې دي ، افسانه لیکل ځانته یو مستقبل فن دی او بیا داسې

فن چې دفنی نزاکتو نو په سبب ډېری پابندی لري او هغه پابندي هم داسې چې د وخت او زمانې د تیریدو سره د کمې په ځای

په زیاتېدو دي . او دغه وجه ده چې که د افسانې تعریف هر څو سره ځوك په ښه او غوره الفاظو کړي نو بیا یې هم ایمکړي ی

غوندې وي . ځوك وایې «چې افسانه هغه لنډې کیسې ته وایې چې لوستل یې د نیم ساعت نه زیاتې ترد دووساعتو وخت ونیسي»

ځوك وایې چې «دا یوه داسې کیسه وي چې په هغې کښې به مناسبو او موزونو الفاظو دژوند یو اړخ داسې ښود ل شوي وي چې

یې ضرورت او بې ځایه خبري پکښې نه وي»

د چا دا خیال دی چې « افسانه یوه ترتیب شوې لنډه کیسه ده چې یوه حقیقي یا فرضي واقعه پکښې په یو

ډېر ښکلي ډول بیان شوې وي او بیا دهغې هره یوه برخه او بېله بېله فقره داسې پېیلې او پیوند

شوې وي چې سر ترپایه خپل مقصد پر مخ بوزي او خپل اثر ښکاره وساتي » .

چا بیا یوازې په دې اکتفا کړې ده چې «د یو کردار یا د ژوند مهمه پېښه په یو ډرامایي صورت په لنډ ډول وړاندې کول افسانه ده» .
غرض دا چې که دا ډول هر څه نه تعریفونه و کتل شي نو دا به دا

ښکاره شي چې که یو تعریف د بل نه ښه او غوره دی خو د سې نه دي چې دژوند سوډېری وشي .

دادب په هغه برخه کښې چې افسانه ځانته یو مستقبل ځای لري ناول ډرامه او قصه هم شامل دي او

دا قصه ئې سره یې خاصیتونه خلط او نږدې دي ترڅو اندازې چې ډرامه او کیسه خو پر یې ده حتی

څینې خلك په دې غلط فهمې کښې پر یوتي دي چې افسانه یوازې د ناول یو راغونډ کړې شوې شکل

دی ، حال دا چې افسانه او ناول په موجوده دوره کښې ځانته بیل بیل حیثیت لري او د دواړو ترمنځ

زیات توپیر شته یوازې دا نه چې ناول ډېر اوږد او افسانه ډېره لنډه وي ، بلکه تو ری داسې ډېری بنیادي خبري دي چې د هغې او پردوالي

اولنۍ والي څخه را پیدا شوی دی. دیوې افسانې د پاره دا ضروري ده چې د سره تر پایه یو کوالی او اثر په ذهن کې قایم وساتي او د نوموړي اثر لاندې دې خان مقصد ته ورسوي او هله به دا یوه کامیابه او پوره افسانه وګڼل شي.

خو په ناول کښې دا خصوصیت نشته او په فني لحاظ سره ورته ضروري هم نه دی په ناول کښې دژوند د رنګارنګو او ګرانو مسئلو ځای پر ځای حل کول او بیا دې ټولو ته دیوه ترتیب ورکول او احساس پر ضرور دی د موضوع په لحاظ افسانه او ډرامه زیات اړیکې سره لري، افسانه د یوې لنډې کیسې په شکل وي خو چې څه وخت دغه لنډه کیسه د کیسې د کار کوونکو جذبات او حرکات په ښه شان سره واضح او څرګند کړي او په دې وسیله د کیسې خوندونه هم زیات آنه دي او لوستونکو ته دا ښکاره شي چې په مخکښې یې د ساخاوندان عقلي را عقلي او خبرې اترې کوي نو افسانه د ډرامې شکل غوره کړي.

همدا سبب دی چې افسانه او ډرامه په خپلو کښې دیو بل سره ډېرې نږدې دي. دواړه و د پاره دا ضروري ده چې اثر ډېر پیدا کړي، په یوه خاص مقصد لیکل کیږي او ځان ورته د سوي دواړه د ژوندون دیو داسې اړخ ښنداره وړاندې کوي چې د لوستونکي په زړه یو نقش پرېږدي.

په پښتو کښې دناولونو په نسبت ډرامې زیاتې لیکل شوې او دوخت د ضرورت او سیاسي مصلحت په وجه سټیج شوې هم دي. نن پښتو ادب د دوو ډولو ډرامو سره اشنا دی یو هغه ډرامې چې دغه اصلاح یا سیاسي غرض د پاره لیکل شوې او سټیج شوې دي، او بل هغه ډرامې چې د راډیو د پاره لیکلی شوې او خپرې شوې دي.

په دې حال کښې دا لازمه ګڼم چې دافسانې دفن متعلق څه ذکر وشي او داوکتل شي چې دافسانې د پاره کومې فني ښېګڼې ضروري دي.

دفن پوهانو ددې حقیقت ښکاره کولو د پاره اول افسانې په درو ډولو وېشلې دي او بیا یې دافسانې جلا جلا برخې څو ولي دي چې څېنې پکښې زیاتې مهمې دي. په دې برخو کښې هره برخه ځان ته خپل مقام لري دومره لوړ مقام چې که چېرې په یوه افسانه کښې یوه برخه داسې وي چې دفني نکاتو نه خالي وي او د ټولې افسانې مقام راټیټوي او دخاوند سره یې پرابروي.

په دې وجه دا ضروري ده چې که اول دافسانې څو قسمونه وښودل شي نو بیا دې دافسانې خاصې خاصې برخې هم وکتل شي او هغوی ته دې یو څه بحث ورباندې وشي.

## دافسانې ډولونه

## واقعي افسانه:

په داسې افسانو کښې کردار هیڅ اهمیت نه لري، د لوستونکي توجه یوازې هغه طرف ته متوجه کیږي چېرې چې څه نوې واقعه کېدونکې وي. دا واقعه او پېښه په یا دخطري څخه ډکه وي چې په زړه کښې خوف او وېره را پیدا کړي. یا به رومانې وي چې د لوستونکي روح خوشحاله کړي او یا به د غه جرم سره تړلې وي چې د کرکې او حقارت جذبې را پیدا کړي.

ښکاره کیږي چې په دا ډول افسانو کښې یوازې واقعه او د واقعې مختلف حالتونه د دلچسپۍ وړ ګرزي.

## کرداري افسانه،

په داسې افسانو کښې د انسانې کردار نقشه په ډېره خونده وره طریقه کښل کیږي واقعات ټول یوازې د کردار د اهمیت زیاتولو د پاره وي، په دې افسانو کښې د کردار او د هغه د ملګرو سره دلچسپي ښودل کیږي، واقعات ځانته هیڅ اهمیت نه لري.

## دماحول افسانه

په داسې افسانو کښې یوازې دماحول اثر د نظر لاندې وي چې په ټوله افسانه خپور شوی دی، دماحول تفصیل ورکول او په ذهن کښې د هغه یو خاص اثر پیدا کول تر واقعې او کردار زیات مهم وي، د داسې افسانو ماحول کله د خوف او وېرې څخه ډک وي چې د فوق الفطرت د عناصرو د موجودیت څخه را پیدا شوی وي. کله ماحول د حیرت او تعجب وي چې د انساني فطرت د کمزورتیا نه په کښې فایده

اخیستل شوی وی او کله د همدردی او خواخوږی وی چې دغه ډول زیاتی دعکس العمل

لامل جوړ شوی وی.

## دریمه برخه.

دافسانې مهمې برخې دادی:

۱- پلاټ ۲- مرکزی خیال اومناسب مواد ۳- دافسانې شروع ۴- دافسانې عنوان.

### ۱- پلاټ:

پلاټ په اصل کښې دهغکې هغه مخصوصی توقی ته ویل کیږی چې د کوم سره دیوه خاص غرض دپاره برابر شوی وی او ددی سره نودی پلاټ عام ادبی مفهوم هم لری چې په هغې کښې پلاټ دیوی داسې خاکې یا نقشې سره تشبیه کیدلای شی چې په یو خاص طرز ترتیب شوی وی. دافسانې په فن کښې پلاټ هغه ساده یا نقشتی ترتیب ته وائی چې افسانه پر مرتبه وی.

دافسانې دټولو نه اوچت او معیاری پلاټ ددوو شیانو ترمنځ تعلق پیدا کول دی.

که دغه تعلق دیوه انسان دبل انسان سره وی، که د کوم شی دیوه څناور سره وی او که د تعلق ددوستی یاددښمنی وی دمحبت یا دنفرت وی، دغم یا خوشحالی وی او که د رحم یا دظلم وی او که څو داسې رشتې وی نوله دغه افسانې دپاره کامیاب پلاټونه گرزیدای شی.

دافسانې پر عام پلاټ چې ان ورځ دټولو ژبو په افسانو کښې موندل کیږی دغه دیوی ښکلی نجلی او دیوه ښایسته هلمی دمحبت شروع کول دی چې وروسته څه داسې واقعات پکښې پیدا شی چې ترمنځ

بې جلاوالی راولی، څوك هغې جلاوساتی او څوك بیا سره یو ځای کاندی.

په دې ډول ساده پلاټونو کښې دټر دی پیچلگی راستلو دپاره دیوسړی محبت د دوو ښځو سره یا د دوو سړو محبت دیوی ښځې سره دلې تغیر او بدلون نه وروسته په ژړ گونو افسانې جوړولای شی.

دځینو افسانو پلاټونه داسې وی چې واقعات یو دبل سره ډیر نژدې او یو رنگ وی ولی دافسانې

لیکلو تحریك یې جلاوی.

زمونږ په ژوند کښې هروخت او هره ورځ واقعات پیښیږی، ددې مطلب دا نه دی چې هره واقعه دی دافسانې لیکلو تحریك راولاړه کړی.

کله چې په یوه واقعه کښې داسې یوه نوی خبره راووځی چې دورځنی ژوند څخه یو تنوع ولری

نو دغه خبره دافسانې پلاټ گرزیدلو څخه وروسته دافسانې لیکلو تحریك کوی.

سره ددې چې د ل بقاډی (کردار) دواقعې او ماحول اهمیت دافسانو دتقسیم په وخت کښې ظاهر شوی دی چې هر یو ځان ته

دونه او حیثیت لری چې ټولی افسانی ددوی دټولو سره ځان ځانی تړل کیږی.

خو دا هم باید ووایو چې داسې یوه افسانه او دافسانو هیڅ پلاټ په داسې نه وی چې په هغې کښې دی داددی واقعه

دفن ماهران دپلاټ په باره کښې په دې خبره متفق نه وی چې پلاټ ددی برخې لری او له برخه دلو بقاډی ده دوهمه دواقعې یا دواقعاتو او دریمه دماحول ده. ولی دادی وانه برخې په یوازې توگه هیڅ حیثیت نه لری تر څو چې دافسانې دپلاټ په مجموعی جدا وجهه کښې یې دیوا و بل سره مرستی نه وی کړی.

دلته د مرستی څخه مراد دادی چې د افسانو په پلاټ کښې که لو بقاډی ته بشکاره حیثیت ورکول وی نو ماحول او واقعات په ورسره مرسته کوی که د ماحول اثر قایمول وی، نو دلو بقاډو او واقعاتو اثر به ور سره وی او که واقعات څرگندول وی نو لو بقاډی او ماحول به د هغې مقابمت کوی.

بله په بل عبارت دواقعې او لو بقاډی ترمنځ یو ژور تعلق ساتل او ددې تعلق په مرسته دواقعې پرمخ بیول دافسانې دپلاټ یو ضروری مرحله ده. سره ددې دماحول مطابق لو بقاډی او واقعه داسې باید ترتیب شی چې دماحول او واقعې ترمنځ څه غیر فطری تعلق ښکاره نه شی. که چیری دافسانې دلو ستونکی په زړه کښې دلو بقاډی، واقعې او ماحول د تعلق په باب څه خراب اثر پریوزی چې ددې درې واړو رشتی ور ته نیمگړی یا بریکې

«پاته په ۲۰ مخ کی»

د نثار احمد «رزمند» ژباړه

# ژبې ته ولې طبیعي پیښه (پدیده) نه شو ویلای؟

ژبه د انساني او بشري ذاتو اودرشي تماس او معاشرت مهمه وسیله ده بې له ژبې بشري رابطه

او معاشرت ناممکن دی. او بې-رابطې او تماسه، په خپله د انسان وجودلري اوده ګولنه. بې له ژبې

تفکر هم ناممکن ښکاري. یعنی دژوند او واقعیت درک د انسان په واسطه او په خپله د انسان مفهوم

په حقه واقعیت کښې بې له ژبې په یوه تیاره کښې دا ایساریږي اما دا دداده (د واقعیت درک د

انسان په واسطه او په خپله د انسان مفهوم په حقه واقعیت کښې) په انساني ګډ او اجتماعي ژوند کښې

تحقق پیدا کوي.

د مثال په ډول، ایرتن او مې سې ي د کوم جنایت په اثر په جزا

محکوم شو او د دې جزا له امله یوی ا-را رامیزه لیري جزیرې ته وشړل شو. په دې جزیره کښې

بېغږ ژوندی سړی نه وو. د ایرتن رابطه له ټولو انسانی سره بیخي شلیدله او په یوه چوپه چوپیا کښې دا ګیر-

شو. ده په لوبي یو وخت کښې د انسانانو سره د ګډ او اجتماعي ژوند کولو استعداد د لاسه ورکړ.

ورپسې یې د انساني تفکر ملکه له لاسه ولاړه او بیا یې په کراره کراره ژبه هم

هېره کړه خو کله چې د مهاجرینو په واسطه بیرته انساني او بشري ټولنې ته راوستل شو او دوهم ځل انساني ژوند ته ور داخل شو

د تفکر ملکه او قدرت یې بیرته لاس ته راوړه په خبرو ګړو شروع وکړه او دوینا خاوند شو.

رچنهاده چې که په انسان کښې انسانیت په یوه ځانګړې بڼه پاتې دی نو ای- ایښودل شوی نو هغه انساني نسل یا د انسان

اولاده چې د وحشي او حیواني ژوند په شرایطو کښې را ایسار پاتې لای او هغه ته ور ځ پاتې لای هرومرو به یې اجتماعي

ژوند او انسانیت له لاسه ورکولای او د حیواني ژوند ملکه به یې پیدا کولای اما داسې نه ده.

د خبرې د سپینې دپاره د یوه هندي

روانشناس ریډسینګ یوه علمي تجربه لوستونکو ته وړاندې کېږي.

ریډسینګ په (۱۹۲۰) عیسوي کال کښې په هند کښې د لیوه په غار کښې

دوې کوچنۍ نجونې پیدا کړې چې د لیوه

د بچیانو سره یو ځای وې او له هغو سره یې ژوند کاوه ریډسینګ لیکي چې یوه-

د بلې او بلې له مخې تقریباً اوه یا اته کلنه ښکاریده او دوهمه نجلۍ

دوه کلنه. کوچنۍ نجلۍ مړه شوه

خو هغه نجلۍ چې کماله نومیده تر لسو کلونو پورې ژوندۍ پاتې شوه.

ریډسینګ د کمالې د ژوند

ورځنۍ نما لیکونه، تغیرونه او پیشرفتونه د خپلو تحقیقاتو په دفتر کښې ثبتول.

د ریډسینګ د تحقیقاتو او آثارو څخه معلومیږي چې کماله

په لومړي یو وخت کښې (کله چې د دوهم ځل د پاره د انسانانو ټولنې

ته راوستل شوه) په څلورو لاسو پښو ګرځیده داسې چې د تګ په وخت کښې به یې پر لاسو

او زنګنو باندې تکیه کوله او د نیمې شپې په وخت کښې به یې د لیوه

په څېر او د ښو په تلو غږیدله. هغه به یې له ځای څخه

د څنډل. خوړه به یې له ځای څخه او بیا به یې خوړه او هېڅ کله به یې

خوړه داسې نه خوړه چې چا به یې

لاس کښې ورکوله او بې به یې ژبه د لیوه یا سپي په شان څټله کړه. څوک

کمالې ته د خوړلو په وخت کښې

ور نږدې شول نو کمالې به ورته داسې د یوه ځنګلي ځناور

په شان دهغشناکه او ژونه را ایستل او د لیوه
په شان په غوریدو د شپې به یې کله کله د ځناورانو غوندې
نارې او انګولاوې وهلې کالی به یې پرځان څیرل
او له ځانه به یې غورځول. دورځې به ویده وه او د شپې
په تیاره کښې به یې ګرځیدله. په اولو ورځو کښې
له اوره او یو ازې رڼا څخه بیریده. دوه کاله یې وروسته
دریدل زده کړل او شپږ کاله وروسته یې تګ هم زده کړ.
د څورو کالو په موده کښې کمالی یوازې شپږ کلمې
زده کړې.

کمالی په دې موده کښې د تیارې څخه د بیریدو
حس له لاسه ورکړ او د تیارې څخه یې نه بیریده په لاسو
به یې ډوډۍ خوړه او اوبه یې هم په ګیلاس کښې څښلې
او د ټولنی سره یې په کراره کراره مینه پیدا کړه ولې
بیا هم دا موفقه نه شوه چې ټول وحشي خویونه هیر او
په انسانی کردار و بدل کړي که څه هم دوهم ځل به
بشری ګډ ژوند کښې داخله شوه.

پورتنی تحقیقات او یلقنی ډیر سینګ هندی
روانشناس په ډیر منصفانه او بې طرفانه ډول په خپلو
یاد داښتو کښې ثبت کړي دي.

له ډیرې مودې راهیسې پوهان په دې هڅه کښې
دي څو ثابته کړي چې انسانی ژبه کټ مټ داسې جوړښت
(اورګانیزم) اری لکه د حیواناتو. دژبې جوړښت او
انکشاف هم د هغو طبیعي قوانینو له مخې منځ ته راځي
د کومو په اساس چې د نورو ژوندیو موجوداتو منځ ته
راتګ او انکشاف صورت نیسي. دا قانون د ټولو ژبو دپاره
چې په هر ځای او هر وخت کښې وي کلی دی. دا پوهان وایي
چې ژبه زیږی، بلوغ ته رسیږی او په پای کښې مری
او له منځه ځي.

دژبې دا ډول تحلیل مخصوصاً په ۱۹ پیړۍ کښې و
داځکه چې په ۱۹ پیړۍ کښې طبیعي علوم پوره موفقیت
ته رسیدلی و داروینزم مفکوره منځ ته راغلې او د هغه وخت
ډیر پوهان چې د انسان او د هغه د استعدادو، ایاقدر
او خصوصیتو په شاوخوا کښې یې څیړنې کولې خپل
ځانته راجلب کړل او تر خپل تأثیر لاندې یې راوستل.

اما دژبې په باره کښې دا ډول فکر کول چې (انسانی
ژبه کټ مټ داسې اورګانیزم لری لکه د حیواناتو ژبه)
سړی ته د طبیعي او حقیقي پیښو (پدیدو) صحیح تشریح او
حل نه شي ور کولای. برعکس سړی ګمراه کوی او له
واقعیته او حقیقته یې باسي.

کله کله ځینې ذهنی او فکری تجربې برعکس سړی
معتقد کوی او هغه داسې چې په لومړی نظر کښې
څرګندیږی چې ټول کوچنیان په یوه ډول تنفس کول،
لیدل، ګرځیدل او خبرې کول زده کوی.

خو دا خبره صحیح نه ده ځکه چې که نوی پیدا شوی
کوچنی یوې لیری اسرار آمیزه بیابانی جزیرې ته چې
په هغه کښې هیڅ انسان ژوند نه کوی یووړل شی او هلته
خپل ژوند ته دوام ورکړی نو هغه کوچنی به په ډیر ښه صورت
تښتیدل، ختل (لکه ونی او نورو شیانو ته) خوځیدل، ټوپیدل
او ځانته خوراك پیدا کول زده کړی. مګر په هیڅ شان
به ونه شی کړای چې ژبه هم سمه وو سره زده کړی. ځکه
چې ده ته دژبې ښوونې او زده کولو شرایط نشته، له چا یې
زده کړی او له چا سره وه غږیږی.

تر ټولو لنډه: باندې کیدای شی چې د انسان طبیعي
بیالوژیکي خواص او وسیلې په جلا او بیل شوی حالت
کښې هم انکشاف وکړی اما هغه ملکی او استعدادونه
چې دژبې سره نږدې ارتباط لری په داسې شرایطو کښې
نشي کیدای چې انکشاف وکړي.

څنګه ده چې د تور پوستی څخه یوازې تور پوستی
او د چیناۍ څخه یوازې چیناۍ پیدا کیږي. نو آیا دا د دې
معنی لری چې تور پوستی ژوی او که په هر ډول شرایطو
کښې اوسی شي خامخا به د تور پوستو په ژبه خبرې کوی او
چیناۍ کوچنی به هم خامخا په چینۍ ژبه خبرې کوی؟

د بیالوژیکي نظریې هوا خواهان او طرفداران
چې دژبې د مطالعې سره علاقه لری ژبه او نژاد د یوشانته-
والی په دا برخه کښې رانیسي. له دې نه لاهم زیات دژبې
او نژاد تر منځ هغه رښتیانی او واقعي روابط او اړیکې چې
په واقعي ژوند کښې موجود دي تحریفوی اما ډیر
پوهان نو د ۱۹ پیړۍ په آخر او د شلمې پیړۍ په سر کې

په بوره ننیو نظر یا ته بانده احتجاجونه کړی دی.

«بودوئین دی کورتنی (۱۸٤٥-۱۹۲۹) مشهور ژبی پوهاند داسی لیکی چی «د نژاد او بوی معینی ژبی پوشانته والی او یو والی یوه ستره علمی گمراهی ده....» دژبی او نژاد ترمنځ حتی چیره باریکه رابطه هم نه لیدل کیږی.

لهدی نه دوی نتیجی په لاس راځی:

۱-د خلکو نژادی او ژبنی ارزښتونه او اړیکی بیخی بیل بیل موضوعات دی- یعنی داچی نژادی ارزښت او معرفی هیڅکله دژبی پر متعلقاتو او اوازمو باندی نه ځغیږی.

۲-نژادی مخصوص ارزښت او پیوندنه د یوی ټاکلی ټولنی د ثقافتی انکشاف سره هیڅ ارتباط نه لری او له همدی ځایه دهچی دنژادی تبعیض بده مفکوره منځ ته راځی. نژادی تبعیض ترا اوسه لاهم دبشر په منځ کښی د یوه ښامار په څیر پروت دی او په مرتب صورت سره د استعماری ملکونو له خوا پرمخ بیول کیږی.

دژبی په باره کښی د بیالوژیکی نظر یاتو طرفداران او هوا خواهان لاتر اوسه پوری هم یو دلیل په خپله بخچه کښی دذخیری په ډول لری او هغه داچی د ټولی نړۍ د کوچنیانو دژبو مشاهدی او کتنی څرگندوی چی د ټولی نړۍ د کوچنیانو ژبی واو که د نړۍ په هر گوټ کښی چی وی ژبا تره د خپل کوچنیوالی په دوره کښی د شونډو هیجایی ږغونه (مامه-بابا پاپه...) څخه کار اخلی او دا رمی نیو اوازو په حیث یی لهخولی را باسی ووروسته نو کرار کرار هغه بشپړوی. دا حقیقت لهدی سره اړخ لگوی چی کوچنیان په اسانی سره کولای شی د شونډو حرکت ادا کړی.

په هر صورت د کوچنیانو دغه نامربوط اوازونه او هیجاوی دژبی سره کوم اشتراک او عمومیت نه لری بلکه یوازی ږغونه دی چی دماشومانو دعضلاتو د ازموینی په نتیجه کښی ایجاد کیږی او دمعنی څخه محروم دی د کوچنیانو دغه اوازونه کټ مټ د پښو او لاسو ټکولو ته ورته دی.

ددې اوازو تصنیف هغه وخت کلمی بلل کیدای شی چی د نوموړو او اصواتو په ډله کښی راسی او د فکر او معنی انتقال وکړای سی. دلته نو د کوچنیانو دژبی داشتراک او عمومیت او پیدایښت دحقیقت خیالات او توهمات خپله کمبله ټولوی.

یو ډول اوازونکی کلمی په بیلو ژبو کښی بیلی معناوی لری دمثال په ډول په روسی ژبه کښی د (مامه) کلمه دمور معنی او مفهوم اداکوی او همدغه کلمه په گروزینی ژبه کښی د پلار معنی او مفهوم اداکوی (پاپه) په روسی ژبه کښی ابا ته وایی اما په ترکی ژبه کښی همدغه کلمه نیکه ته وایی (دیده) په گروزینی ژبه کښی مور ته وایی. انگلیسی کوچنیان د (دیده) کلمه پلار ته استعمالوی.

سره لهدی چی ټول کوچنیان دا ټکی پوره یو ډول تلفظ کوی اما هیڅکله نه شی کولای چی د یوه او بل په خبرو سره پوه شی داځکه چی ددوی ژبی سره بیلی دی او ددوی ژبی د خپلو لویانو یا په بل عبارت دخپلی ټولنی سره ارتباط لری خصوصاً هغه لویان او هغه ټولنه چی دوی ته دژبی معنا هیجاوو څخه کلمی جوړوی او دهیجاو و اصول په کلمو باندی ورزده کوی.

ایا داټو بلای شو چی څناور هم دانسان غوندی دژبی موهبه او نعمت لری او که یه؟ نه هیڅکله نشی کیدای. پخوا لا ارسطو ددا سی فرضیی پر ضد خپله نظریه داسی څرگنده کړی ده «دژبی او ژوندیو موجوداتو له جملی نه یوازی انسان ته دخبرو کولو استعداد او نعمت ور په برخه شوی دی».

(دانته) وایی «دبیان او نطق قوه یوازی انسان ته په کارده ځکه چی دوی دژبی په واسطه خپل افکار یوه او بل ته سره وایی».

(باسوایت) په ۱۷ پیړی کښی داسی لیکی. «پرخو داچی اوازونه او کلمی په هوا کښی خپریږی د هوا نه غوږو او د غوږو نه مغزو ته ځی او وروسته له هغه داوریدونکی په ذهن کښی مفهوم

مفهوم پیدا کوی بل دا چې د اواز
او کلمو درك او پوهه دیوی تاکلی
اعلامی په واسطه چې د خلکو
له خوا دیوه مفهوم او یا عنصر د
تومو او د پاره تعین شوی وی او د
توموډی علامی په واسطه په خپل
ذهن کښې دهغه شی د او ستل او
حاضرول کوی چې ددوی په
واسطه ښه شوی او تاکل شوی وي
دژبې درك او پېژندنه هم به دې
اخیر ټکی کښې ده. ځکه، چې
د داسې درك او تعلقی اثر په
ځناورانو کښې بېخی نه لیدل
کېږی » .
رښتیاده چې موږ په ځینو
وختو کښې مشاهده کولای شو چې
ځناور هم دیوه او بل د پېژندلو د
پاره ځینې اوازونه استعمالوی .
دمثال په ډول، هیلۍ دخپلو
بچیانو د رابللو د پاره ځینې
سګنالی اوازونه استعمالوی او
همدا رنګه زرکی او دغره مرغانه
هم ددښمن څخه دخپل سیل او دمی
د نجات او خلاصون د پاره ځینې
مخصوص او غیز سیګنالونه
استعمالوی، نور ځناوران هم
کولای شی چې د ځینو سګنالی
پرغونو په واسطه دخپل (قهر،
ښېرې، رضا) احساس څرګند کړی
مګر دا ټول غیر ارادی او بیا —
لوژیکی پیښی دی کوم چې یوه
برخه د بې شرطه عکس العمل د
غریزې څخه سرچینه اخلی او بله
برخه یې د شرطی عکس العمل یعنی

تجربې او ازمایښت څخه سرچینه اخلی.
هیڅ کلمه ئی او فکر نه اظهار نه پکښی
لیدل کیږی د بیالوژیکی نظریاتو هوا
خواهان کله کله دمرغیو دشعورانه تقلید
له مخې استناد کوی دوی دمثال د پاره د
توتی او میناد خبرو کولو پیښه د دلیل په
حیث وړاندې کوی.
رښتیا چې توتی او مینا خبری
کولای شی. اما دا خبری بواځې داوازونو
د تقلید کرونکی عکس العمل په اساس
زده کوی او همدا رنګه، چې توتی او مینا
د دی جملی (توتی احمق دی) په معنی
نه پوهیږی او ځانته ښکنځل کوی دا ځکه
چې توتی نه خبری کول بواځې داواز او
تقلید ښکاری او د اواز او معنی په
ارتباط هیڅ کله نه پوهیږی.
جدی څیړنی او کتنی ثابتوی چې
ځینې قوی ځناوران د نورو کمزورو
ځناورانو د خطا ایستلو او ښکار کولو
په غرض د کمزور ځناورانو ځینې مخصوص
اوازونه تقلید کوی تر څو چې د هغو په
واسطه کمزوری ځناور ځانته راوبولی
او بیا یې ښکار کړی دمثال په ډول،
پړانګ د ګوزنو د ښکار د پاره له داسې
حیلې او مکر څخه کار اخلی: د نرو ګوزنو
دا عادت دی چې په ښځه ګوزنه باندې
جنګ سره کوی. د جنګ په وخت کښې
هغه دوه ګوزنه چې په ښځه ګوزنه یې سره
جنګ وی هر یو مخصوص اوازونه کوی
ددی اوازو معنی دا ده چې هر نر ګوزن
ددی اواز په واسطه خپل طرفداران
رابولی تر څو چې په خپل حریف او مقابل
باندې بریالی شی. نو پړانګ یې د ګوزنو
ښکار کوی د ادنرو ګوزنو نو د

جنګ اوازونه یې په سرچپه ډول
زده کړی دي. کله چې وغواړی
ښکار وکړی نو په یوه بڼه های
کښې دا اوازونه تاری کړی.
ګوزن چې د اوازونه واوری نو په
منډه ورته راځی کله چې ور ته
رانژدې شی پړانګ پر هغه باندې
حمله کړی او ګوزن ونیسی.
پر مشهور کرځندوی (سیاح)
و. ك ارسین. یېك د نوموړی
تقلیدی اواز په باره کښې لیکی:
« پړانګ هم هغه اوازونه کوم چې
نر ګوزن یې د جنګ په وخت کښې
کوی منعکسوی مګر په چپه ډول. »
همدا رنګه ممکنه ده چې پیشو د
سپی غپا او سپی د پیشو میو
میو زده کړی سره ددی چې دوی
او له درجه کورنی او اهلی شوی
حیوانان دی او د انسان سره یې تر —
نورو حیوانانو پخه کورنی رابطه
ساتلی ده. په نتیجه کښې د
(ای. پی. پاولف) پلټنې موږ ته
د تیوری له مخې دا امکانات
را کولای شی چې پورتنیو پوښتنو ته
په صحیح ډول جواب پیدا کړو.
پاولف: لیکی ځنګلی ځناوران
او لومړنی انسانان، خصوصا
لومړنی انسانان چې د حقیقی او
واقعی انسانانو په صورت تکامل
ونه کړی او د مترقی او معاصرو
انسانانو حالات او څه رنګوالی ته
دا ونه رسیږی تر هغو پورې دخپل
چاپیریال د ټولو موجوداتو
سره بواځې د هغو انګیزو هیجاناتو
او تاثیراتو په مرسته ارتباط پیدا
کوی کوم چې یې دخپل ماحول او
چاپیریال د هر یوه تحریك او
عکس العمل څخه د باصری غریزی
او د لمس د حواسو په مرسته حاصل
کړی. «او د بیا»

# هنر او ادب

## خواب آلوده سترګې

تل دې مستا د خواب آلوده سترګو خواب وي
چې فتنه په خواب ویده سې ډېر ثواب وي

لکه مې چې په مینا کښې تجلي کا
نور د حسن په حجاب کښې بې حجاب وي
ته چې ما ته لولوي پټې د صبر
زه هم ځکه په دا راضي یم کړه مې تاب وي

زه په داسبب په ترکو پسې ژاړم
چې ژړا د عاشقانو د مخ آب وي
د عاشق سترګې په داسبب شوې باکې
چې مدام د جوې پر سر لکه حباب وي

له خالي خولې په عوږ دې چې غټه وي
که خټلې د حباب پر سر سیلاب وي
هم په دالې دلفې اثر پیدا شه
چې په تشه ګیډه صبر د رباب وي

د سر پس له خپله نقده بهره نشته
لکه مار د ګنج د پاسه پیچ و تاب وي
کاملان تعلقات د دنیا نه کا
لکه باز د مرغان پښه په رکاب وي

چې چادې غواړې بې شماره بې حسابه
په رحمان به د هغو ټوګه حساب وي

«رحمان بابا»

سحر ګاه و مینان جدا کیدله
ګل ژړل، بلبل ژړل، شبنم ژړله
شمع ولویده له پښو نه سوه بېهوښه
د بوډا ژړ کندن سا یې ختله
(ط)



سوځېږم لکه شمع په محفل کې د دوستانو
تودې اوښکې مې څاڅي له خوښې پر یاد خوګانو

خوښېږمه ترځې چې په فراق کې یې سوځېږم
ځان کړمه قربان نن تر وصال د مهوشانو
ك. ط

## تحول

علي محمد «رسولي»

تحول دا غې په تېره کې سوه کاروانه بدل
د ژوندانه په شاوخوا کې سوه دودونه بدل
محکه آسمان او کائنات ټول له بدل څکاربېږي
ځای چې اوس زموږ ځوانان هم کړي فکرونه بدل

### پوهه

ان په پوهه شاید ی کند ی ابا د یږي
جهالت باندې و دان ځای خرابېږي
ک څوک وارې صحیح علم او پوهه؛
خودې ورځ په ورځ ومخ ته روانېږي

### د ځان مدح

پوچاغ ناستی یو مرغی کول دیږو ته
په ډېر ناز سري مقابل ښېل و زړونه
نا پېره څکاري ټك ور باندې و کړ
د مرغي له جسمې و کړل کېسا پېږ ته؛

# لکه گل په لمن پټ تازه شبنم وړم

ستا په عشق کښې تهمتونه د عالم وړم
په امید دی د وصال د هجر غم وړم
سود او زیان و عاشقانو ته یکسان دی
ځکه غم ارچا دی دواړه سره سم وړم
په ژړا او ښکو می د صبر کور نړېږي
لکه لوند دیوال تر پښه پوری نم وړم
د زړه زخم می خندا په نادانی کا
چې بی تا د بل طبیب څخه مرهم وړم
په ستم کښې دی کرم هسې ځلیږی
گویا څېن پله شمع په تورتم وړم
سالم زړه چې می سپار لی ستا په لاس ؤ
اوس ئې ولې نیمې دروغ ابهی کړم وړم
ستا د حسن د افتاب له گرمه خوړه
لکه گل په لمن پټ تازه شبنم وړم
د عمل شاگرم زما «شمس الدین» بد دی
دروغ ایمان به ستا په فضل په کرم وړم

## سور گل

هغه سور گل چې د کور پر دروازه دې پروت ؤ، کاشکې دې پورته کړی وای، بوی کړی او مچ کړی دې وای، بیا دې نو د خپلې نازنینې سینې د ښکلا د پاره پر گریوان ځوړند کړی وای. پوهېږې چې ولې؟

دا ځکه چې هغه گل ستا د محبوب په اوښکو پریوله سوی ؤ د زړه سره.... حتماً پوهېږې: که د گل پر مخ یو څاڅکی پیدا سی هغه شبنم دی. اما د هغه گل پر مخ د سبا ئی شبنم پر ځای زما اوښکې لگېدلې.

او کاشکې دې هغه گل را پورته کړی وای، بوی کړی او مچ کړی دې وای او بیا دې د خپلو ښکلو وریښتانو په لاره کې ایښی وای.

زما زړه، زما عشق ؤ چې هغه گل په ډېره واوښتی او ستا و خواته می د رو غورځوی. کاشکې دې پورته کړی وای، بوی کړی دې وای او مچ کړی دې وای، په خپلو نازنینو گوتو دې پاڼه پاڼه کړی وای او بیرته دې ما ته دا سپارلی وای.

# وطن دوستی

د سپی ئی ندرو قیمت دی په وطن کی
زره نور سره سیالی کړی په روزن کی
د غربت تر صحت داغ د وطن ښه دی
عقیق خوښ په ځیگر خون وی په یمن کی

د گوهر زړه په صدف پسی سودی شو
که ئی هار کا مهوه شاه په گردن کی
گل په هغه لکه په اغزیو کی تازه وی
پژمرده شی د زربفتو په دامن کی

ای جدا شی له نیستانه ژړا کاندی
په اتش کی شمع ژاړی په لگن کی
د ماهی ژوند گالی بی او بو نشته
که ئی پټ کړی د گلونو په خرمن کی

په غربت کی مشک ژړی ژړی پریشان شی
په نافه کی وی زړه جمع په ختن کی
که توتی ته د ازغانو صحبت مرگ دی
زاغ هم خوښ ته دی د دوی په انجمن کی

د وطن وصف و چا ته کړی (کامگاره)
چې ئې حب دی څښتن ایښی په هر تن کی

ټولونکی پنهان

## لنډۍ

زلفی می تاز کړی کړی نه سوی
د مسافر اشنا پر سر ویربدنه
زلفی وهه پر مخ ئې پری کړه
مار چې زخمی سی مخامخ حمله کوینه
زلفی می ځکه را اوږدی کړی
چې زه پر بام یم یار تر لاندی ژنگومه
زما د زلفو ارمانجنه

دا څه دا څه چې پکښې درکړمه ټاارنه
لیلا په زلفو پانسی دا که
عدالت کوم دی چې فریاد ورته کومه
توره تیاره ده نه دی ویښم
زلفی دی لیری کړه چې ودی پېژنمه

# غرنۍ پیغله

## دوهمه برخه

په تیره شپه کې موږ دا لکیسه تر هغه ځایه ورسوله چې د مریمې قاصد رستم ته د مریمې د راده

خبر راوړی او هغه ته یې وویل چې مریمه ستا په انتظار کښې شپې سبا کوي. نو رستم خپلو

ملګرو ته د دې خوا شیانو خبر ور او ربه و ورو سته د اسې وویل:

ملګرو تاسې ته معلومه ده چې زه او مریمه یو سره لرو خو اوس ځینو ظالمانو زموږ د مینې دنیا

وړانه کړې نو زه به یا خپل سر بایلم او یا به مریمه د کریم له کوره راباسم نو په دې لار کښې ستاسې

مرسته غواړم.

ټولو په یوه آواز ورته وویل: موږ به هیڅ ډول مرسته ستاسې

څخه دریغ نه کړو.

رستم سره د خپلو ملګرو او ځادو یوه کور خواته رارهي سو

زمې مخ پر تېر بدوو غرني سپېږي ورو ررو خپل د داوري سپین طبیعي لباس له ځانه لېري کاوه

رستم ته داوړي غرني سپینه ښکاره

بې خونده او بې رنګه ښکاریده دا ځکه چې دوه ګرانه مریمه اوس د بل په نامه شوي وه.

رستم کلي ته راورسېدی

او د سلیم خان کېږدۍ یې محاصره کړل سلیم خان په خپله کېږدۍ کښې په خوا ده خوب ویده و چې ناڅاپه د مریمې مور نغږ پر وکې

چې ته کښېنه زموږ کېږدۍ خلکو محاصره کړې ده سلیم خان دا اورېدو که ګوري هغه خلک چې ده ځادو یو سره لېږلي وه اوس

یې د ده کېږدۍ محاصره کړې ده سلیم خان له یوه طرفه ددې کار علت وپوښتی هغه ورته وویل موږ رستم خان د کلي مشر

ولکه نو ستا د امر تابع نه یو.

سلیم خان پر هغو کسانو چې د رستم سره په سفر تللي وه غږ وکې چې دوی

یاغي شوي دي راځي د دوی سره وجنګیږو خو سلیم خان په کلي او کور کښې د خلکو سره داسې رویه نه وه کړې چې اوس د

زحمت او تکلیف په وخت کښې ده په درد و خوږي ده څخه ټول خلک په عذاب وه او ددې موقع انتظار یې درلود چې د چادو

واګې د رستم غندې نجیب سړي په لاس کښې واخلي او دوی د سلیم خان له ظلمه خلاص شي نو یوه هم د رستم سره په جنګ

کولو کښې خپله اماده ګي نه کړه ښکاره. سلیم خان چې هر څه د جنګ امر ورکاوه چا یې خبرې ته غوږ نه نیوی ځو په اخر کښې

ټولو رستم د مشر په حیث وټاکه. سلیم خان لاچ پر ځمه پر ښکه و لویده او ضعف شو خو یو وخت چې په حال کښې راغی وي لیده

چې سر ته یې د رستم پر ژنګانه پروت دی نو پسله هغه سلیم خان په ژړا شو او رستم ته یې وویل ځو زه په ما د یښنه چې ستا د پاکي مینې

څخه و ګرځیدم تا زما د لور مریمې سره حقیقي مینه درلوده. زه اوس سپین ږیری سوی یم نو زه شم

کولای چې د قبیلې مشري دې پر غاړه واخلم ته زما په عوض کښې ددې کار اداره پر غاړه واخله

او ما بښنه ما د یوې اشتباه له مخې خپله لور مریمه و کریم خان ته ورکړه. مریمه اوس هم ستا په

انتظار کښې شپې سبا کوي اوس زودې ده چې خودکشي وکړي ما خپله لور مریمه و تا ته درکړې ده

ته ژر ورسه هغې ته نجات ورکړه ما په خپل لاس خپله لور بدبخته کړه وروسته تر دې خبرو ټوله خلک

د جنګ دپاره تیار سوه او د کریم د کور خوا ته روهي سول سلیم خان هم ورسره ؤ. ښکلې مریمه په خپله

کوټه کښې یوازې ناسته وه او پر خپلو ناکامه مینو باندې یې ژړل او د خیال په دنیا کښې یې د رستم

سره خبرې کولې او د هغه څخه یې بښنه غوښتل. په یوه عالم چرتونو کې غرقه وه په دې ترڅ کې

کریم خان د کوټې دروازه ورخلاصه کړه په داسې حال کې چې ډیر ناراضه معلومیدی مریمې

ته یې وویل: «مریمې زه ستا په مقصد نه پوهیږم ستا په زړه کې څه دي؟ ما د کاو کلو ستا مینه

پېژني کې ساتل او دا هیله مې
درلوده چې ته زما د کور میرمن سې
خو اوس چې ته زما په نصیب شوې

ددې پر ځای چې دا خوشبخته کړې
زه دې لا بدبخته کړم دا ځکه چې
ته زما څخه نفرت لرې. نور نو

زما حوصله تنګه سوې ده او د
دوستۍ حل د پاره تا ته اخطار
درکوم چې یا به مې د کور میرمن

کېږې او یا به دې د ګور میرمن
کړم...)
کریم خان لا خپلې خبرې

نه وې خلاصې کړې چې د باندې
یو ځای ورغوی جوړ سو او یو
نوکر ننوتی کړې چې باداره

زر راوزه. کریم په تلوار ودروت
چې څه پېښه ده. که ګوري د کور
شاوخوا ټول په توپک والا سپرو

احاطه کړې ده. پېژني او اخطار یې
ګي پوښتنه وکړه څه کیسه ده،
دا خلک څه غواړي؛ یو سړي

د حاضرینو څخه ورته وویل چې
رستم خان د سلیم خان پر ځای
د قام مشر ټاکل سوی دی او اوس

د سلیم خان په ملګرتیا راغلی دی
چې خپله معشوقه یعنې مریمه ستا
له کوره بوزي. کریم خان چې

دا اوریدل نو په ډېره زړنګۍ لې
ځان تر خپلې کلا پورې ورساوه.
د جنګ بنا یې کښېښوول او پر کلي

ګي ږغ وکړ چې دا خلک ته زموږ
پر ناموس تېری کوي.
د دواړو خواوو ترمنځ سخت
جنګ ونښتی څو د کریم خان

او دهغه د پلار ستار خان په مړینه پای ته
ورسېدی او یو شمېر نور بې ګناه انسانان
هم په دغه کې ووژل سول. مریمې چې د رستم

د بري خبر واورېدی له ډېره هوسه به
بې هوښه شوه کړی. دا په دغه لحظه کې
هغه مرغی ته ورته وه چې د قفس څخه

ازاده سي. نو هغه ورځ چې رستم او سلیم
خان د مریمې دیدار ته ورغله. د دغو دوو
مینو د وصل لحظه؛ هغه رنګونه چې د دوی

د دوستۍ ګو یو او بل ته ردوبدل کول
هیڅ ژبه یې نه سي بیانولای. په دې ترڅ
کې یو مشیبه مطلقه چوپه چوپتیا وه څو

رستم مریمه مخاطب کړه:
ګرانې مریمې! ستا کلي مینه دوې
مرحلې لري، یا بري یا مړینه. ما ستا په

مینه کې په سر بازي وکړه او خو ستا مینه
مې له لاسه ورنه کړه. څو د ناکامۍ په
پیاله کې مې د بري شربت نوش کړه،

رستم لا خپلې خبرې نه وې خلاسې کړې
چې سلیم خان مریمه په غېږ کې ونیول
او په ژړا یې ورته وویل «لورې ما وبښه

ما ستا او د رستم په حق کې ظلم کړی دی
چې ستاسې پاکه مینه مې نامراده کړې وه
ددې جنګ او ددې بې ګناه انسانانو

د مړینې سبب زه سوم خو اوس تاسې ته
ددې بریالیتوب مبارکي وایم او ستاسې
د سعادت هیله کوم»

مریمې د بښنې په توګه د پلار لاس ونه
مچ کړه او ورته وې ویل «پلاره ما ته
بښلی یې، هغه دا ده چې د رستم څخه بښنه

وغواړې او ما له دې زندان څخه وباسې
او تر خپله کلي مې ورسوې»
هغه ورځ چې ټولو پر کېډه ارګی
کښېښوی او خپل کلي ته راغلل.

سلیم خان چې خپل کلي ته راغی
نو د سبا شپې د پاره یې د مریمې او
رستم د واده ترتیبات ونیول.
سبا شپه د دوی واده په ډېره
خوشحالۍ سر ته رسېدی او دا دوه
مینانو خپل هدف ته ورسېدل.

.........................

## غوره وینا وی

هغه شیان ډېر ښه دي چې
اعتدال ته نژدې وي.
حضرت محمد (ص)

● ● ●

ستاسې ډېر ښه دوست هغه دی چې
ستاسې عیبونه مخامخ درته وایي.

● ● ●

کار وکړه او ډاډه اوسه چې
بریالیتوب دې په برخه دی.
حضرت علي (ک)

● ● ●

د هر عیب مور فقر، خواري
او بېکاري ده.
(روسو)

● ● ●

د انسانانو په ژوند او مغزو
کښې ډېر طاقتونه دي چې پراته دي
چې د همدې استعدادونو په ږغ
راوښېږي او په کار پیل کوي.
(ولیم جیمس)

● ● ●

دا دیوه انسان ډېره زیاته
نیکمرغي ده چې دښمن هم دهغه
د ضرر څخه بې غمه وي.
(ویکتور هوګو)

● ● ●

کار انسان ته له درو بلاو څخه
نجات ور کوي؛
له فسق، احتیاج او خواشینۍ
(ولتر)
عاطفه د عقلي ضعف نښه ده.

(د۱۱مخ پاته)

# دراما او ...

څه کاره شي نو د اد پلاټ سخته
نا کامي ده. دا ډول څه خامي په
ابتدائي افسانه ليکونکو کښې
ليدل شوېدي.

ددې څه وجه په عمومي
توګه دا وي چې دا سې افسانه-
ليکونکي د خپل علمي قابليت
څو دلو د پاره د لو بغادې ماحول
او واقعي اتصاد را وستلو په ځاي
د تخيل لوړوالي او دوبي ژواني
معتبره وګڼي بيځايه تفصيل
او بې موقع خبرې پلاټ ته ځني-
داخلې سي او د پلاټ توازن ګډوډ
کاندي.

د يو ښه او معياري پلاټ دپاره
لاندې پنځه شرطونه ضروري دي.

۱- د افسانې پلاټ بايد ډير
ساده او عام فهم وي، څه په دا وي
چې په هغه کښې يوه واقعه ذکر شوي
وي او دېوي بلې واقعې په ځواوي
نو کومه واقعه چې د افسانې ليکو-
نکي ذهن ته ډيره نژدې وي
هغه دې د نورو واقعو نه يوه او
ښکاره وي ځکه د هغې واقعې د نورو
-ره تړلو لو کښې او بيا ډير
ګډوډ کولو کښې د اولنديښنه

کيداي شي چې د افسانې ليکونکي
دذهن هغه خبره هم پېچېده کړي چې
د واقعې سره تعلق لري او لوستونکي
د افسانې له د څه بودولو په ځاي افسانه
نا بوده وګڼي.

۲- په پلاټ کښې چې څه بيان شي
دا ضروري نه ده چې هغه دې رښتياوي
خو دا پکښې ضرور ده چې په دا سې ډول
څرګند شي چې رښتيا ښکاره شي.

د افسانې پلاټ هڅکله د يوې
اصلي واقعې کټ مټ عکس نه وي ولې دا
په کار ده چې د انقشه دې په دا سې رنګ-
کښې وړاندې کړی شي چې پنداو پيولندې
برابروي او ذهن يې ومنلای شي.

۳- د افسانې په پلاټ کښې دې نوي
شي چې جدت ورته وايي را پيدا شوي وي
په دې ډول چې يو ځل يوه واقعه په نوي
رنګ وړاندې شي ولې په دې کښې
احتياط بايد وشي چې زړو واقعاتو ته
دومره نوي رنګونه ورنه کړل شي چې
لوستونکي ته شناخته ښکاره شي او
داخيال وکړي چې دا نه پخوانۍ واقعات
دي او نه اوسنۍ په دې ډول پلاټ کې دواړه
زماني (ماضي او حال) پادښې خرندوره
طريقه اختيار شوي وي چې د ماضي د بې-
خوانده خبرو پر ځاي د حال خرندودي

خبرې ور داخلې وي او د ماضي
خوندورې خبرې د حال د خبرو سره-
سم په بوه تول دواني وي.

٤- د افسانې په پلاټ کښې
بايد تسلسل موجود وي، په
شروع کښې دې افسانه په مزه مزه
روانه وي، د لوستونکي توجه دې
حالته را کښوي او کله چې دې حد ته
ورسيږي چې لوستونکي چه ځان
ته را کش کي نو بيا دې خپل تګ
تېز کړي او چې کله پاي ته
ورسيږي ځاي په ځاي دې ودرېږي
او د لوستونکي د پاره دې د ونه
ګنجايش پرېږدي چې ور وسته
وريا ندې فکر وکړي.

٥- د افسانې پلاټ بايد يو مقصد
ولري او هغه دې په پلاټ کښې به
يوه دا سې ښکلې اندازه کښې
پټ پروت وي چې يواځې يو څه
لوستونکي يې پکښې پيدا کړي.
که چېرې په پلاټ کښې څه

خاص مقصد نه وي نو د هغې ليکل
خپل وخت ضايع کول او د بل وخت
برباد ول دي او تر دا سې پلاټ

افسانې ليکونه، نه ليکل ښه دي.

۲- مرکزي خيال او مناسب مواد:

په افسانه لیکلو کښې د ټولو نه گران کار د موضوع یا مرکزي خیال نه په ښه شان سره واقفیت حاصلول او مناسب مواد ورته راټولول دي. که چیرې د افسانې لیکونکی د افسانې له موضوع سره د ښتیانې علاقه ونه لري د هغې د هر اړخ نه ښه خبر نه وي او د هغې متعلق یې تیر کړي چښې لا کو چیرې خبرې حقیقت ته د رسیدو کوښښ نه وي کړی نو په افسانه کې هیڅکله پر موضوع پوره حاکمیت نه شي پیدا کولای او نه یې کښې په ښه ترتیب مواد منظم کولای شي چې نتیجه یې د افسانې لیکلو تیا او نیم کړه ښکاره کیدل دي. دا ډول غلطي د نوو افسانه لیکونکو څخه ډیره ری کیږي.

د مرکزي خیال یا موضوع څخه بې پروا کیدل د افسانې بې خوندي او بې رنگۍ ثابتوي او د ذهني ارامۍ پر ځای په ذهني پریشانۍ پیکښې وي. د مرکزي خیال د ساتلو دپاره دا ضروري ده چې په دماغ- کښې د موجوده موادو پوره ښه ترتیب شوي نقشه جوړه سي مواد ټول ځای په ځای او درجه په درجه ولگول شي، چې کله او په کوم ځای کې د یو شي دپاره ضرورت پیښ شي نو په هغه وخت او په هغه ځای کښې راو اخستل شي، او کنه نو د ذخیره دي تر هغه وخته محفوظه وي تر څو چې د مناسب استعمال موقع پر نه وي راغلې.

د مرکزي خیال د ټینگ ساتلو دپاره لاندې شیان ضروري دي.

۱- افسانه لیکونکی دې ښه مشاهده کوونکی وي، سترگې یې هر وخت خلاصې وي او د دنیا هر شي ته په غور او فکر گوري د هر شي اړخ په خپل خیال کښې ساتي او د ضرورت په وخت کې صحیح او باریک تفصیلات وړاندې کولای شي.

۲- دی باید د ښې تجربې خاوند وي د دنیا د سړو تودو څخه په عملي ډول هغه باید ځان ته خپلې لارې چارې جوړې کړې وي.

چې کله داسې مشکلات د افسانې د لیکلو په وخت کښې ورته پیښ شي نو سمدستي یې علمي لاره پیدا کړي. د هغه وجه ده چې ښه افسانه هغه څوک لیکلای شي چې د ډیر عمر خاوند او ژوندانه د حادثاتو څخه ډک وي.

۳- دی باید د مطالعې سره مینه ولري چې د ډول ډول کتابو له کتلو څخه ورو سته د مستقلې رایې او نظر پر خښتن شوی وي، څو چې د نورو لیکنې ورته کړای شي.

٤- دی خپه محاسبه کوونکی وي هر څه چې لیکي هغه دې بیا تلي او په تنقیدي نظر یې ورته گوري. خپله کمزوري دي هم ښه په ځغښې ورته پرته وي، که هغه هر څو ښه لیکونکی وي ولې بیا دي هم پر قلم پوخ نه بولي، خپلې خامۍ لیکنې بیا دي لټوي او د ایرې کولو کوښښ دي کوي په خپله لیکنه کښې دې هیڅکله د خپل وس په اندازه داسې شی نه پرېږدي چې په خپل خیال کښې یې معیاري نه وي.

۵- هغه دې د نورو سره مشوره کوي او د پر اد نا سړي مشوره دې هم نه دوي بلکه په هغې کښې دې فکر و کړي، کله کله داسې هم کیږي چې د یره نا پوهه خبره هم ډیره ښه دي. چې له ډیر تکلیف ورو سته یې نه کړي وي.

۵- دی باید ښکلې خبرې په باره کښې د نورو سره بحث و کړي او د خپل زړه ډاډ دي پکښې کوي. هغه دې خپلې غلطۍ په ډیر خوښۍ سره منې او د نورو ترمیمو ته دي قبلوي.

٦- دی د نورو ته موقع ور کړي چې د هغه افسانه ترڅا پیدو د هغه په غور سره ور گوري ځکه چې که افسانه نو پس ته هر څو مره مرکزي خیال په خپله افسانه کښې قایم ښکاري خو بیا هم دا د هغه د خپل خیال نتیجه وي.

لنډه دا چې د مرکزي خیال قایم ساتلو او د مناسبو موادو جمع کولو دپاره افسانه لیکونکي ته ډیر څه کول په کار دي.

### د افسانې شروع:

هیڅوک دا دعوه نه شي کولای چې د افسانې شروع کولو دپاره کومه طریقه ډیره ښه او د هرې موقع سره مناسبه ده ځکه چې د افسانې شروع کول کومه مخصوصه طریقه نه لري.

د افسانې په شروع کولو او سرته رسولو کښې که یو طرف ته د افسانه لیکونکي خپل زړه جذبات ښکاره کول مقصد وي نو بل طرف ته د هغه هدف دا وي چې نور خلک دې د هغه افسانه ولولي او هغه شان خوند ورې واخلي لکه څنگه چې په خپله لیکونکي تر ی اخیستی دی.

(نور بیا)



تهیه کوونکې: میرمن ملاله

# د حامله میرمنو د ژوندانه لار

ګرانو میرمنو حامله توب یوه طبیعي پدیده ده، لکه هر نګه چې خوب، خوړل، څښل او کار کول د ژوندانه د دوام د پاره لازم دي نو تولد او تکثر هم د بقا او د نسل د زیاتوالي د پاره لازمي امر بلل کیږي.

د حاملګي هغه پېره د اوږدل کاملاً یو اساسه کار دی. څکه چې حامله میرمن ته دارو او د خاص درمل ته اړه نلري. بلکه حامله میرمنې کولای سي چې د پخوا په شان (یعنې د مخه تر حامله توب) خپلو ورځینو کارو ته ادامه ورکړي. صرف د دغو کارو څخه باید ډډه وکړي. څکه چې د حاملګي په دوره کې د کوچني مسئولیت د مور پر غاړه دی. شپې د ویښ ول، پر له پسې بې خوابي او د حامله میرمنو ګډون کول په ودونو او ښادیو کې چې د شپې تر ناوخته پورې دوام کوي، دغو میرمنو ته د بدني او روحي فشار سبب ګرځي، چې د فشار نه یوازې پر میرمن اغیزه کوي، بلکه کوچنی هم متأثره کوي.

دا دي د لته څو ساده لارښوونې راوړو چې نه یوازې د حامله توب په دوران کې مهمې دي، حتی په ورځني ژوند کې هم مثبته اغیزه کوي:

۱ـ حامله میرمنې باید د شپې لږ تر لږه اته یا لس ساعته خوب وکړي.

۲ـ د حامله توب په زمانه کې په هفته کې یو یا دوه وار د باید حتماً حمام ووسي.

۳ـ غاښونه باید د شپې تر بیدېدو د مخه برس سي، څکه چې د حامله توب په وخت کې اوریځې پر ضایعات ورکوي.

۴ـ حاملې میرمنې باید پراخ کالي واغوندي او د تنګو کالو د اغوستلو څخه ډډه وکړي.

زیاتره میرمنې په دغه دوره کې ځان ته چنالی پامارنه کوي. په داسې حال چې کولای سي د پخوا په شان خپل ځان سینګار کړي.

باید پام وکړو چې د حامله توب په دوران کې د پر لوی خطر په ساري او میکروبي ناروغیو اخته کیدل دي. کله کله میندې د حمل په ترخ کې په شري یا کوی اخته سي. په دې وخت کې حتماً کوچنی هم د خطر سره مخامخ کیږي. له دې امله نو حاملې میرمنې باید د ساري ناروغانو د نږدې ورتلو څخه ځان وژغوري.

## د حامله توب په ترخ کې د دواوو استعمالول

محترمې میرمنې باید د حامله توب په دوره کې پرته د ډاکټر له سلا او لارښوونې پر خپل سر دوا دې استعمال نه کړي. خصوصاً هغه ډول دواوې چې تراوسه پورې نه وي ازمویل سوې. څکه ممکنه ده هغه دوا چې د مور د صحت د پاره ضرر ونه لري، خو د کوچني د پاره مسموم او خطرناکه وي.

«پاتې په مقابل مخ کې»

پر له پسې ګروم او بېره دېدن
د رګو ډېرېدو او د وينې د دوران
د اختلال سبب ګرځي او ښايي چې
جنين سقط وکړي. په دې اساس
نو بايد تر وسه وسه حامله ميرمنې
له هيجاناتو څخه لېرې او آرامې
وساتل شي.

## آزاده هوا او ورزش

آزاده هوا تنفس کول د روغتيا د پاره لازم دي په تېره بيا د حاملې تو په وخت کې. حامله تو ب آزادې هوا او روښنايي ته زيات احتياج لري. هغه حاملې ميرمنې چې په تاريکو او لمناکه کوټو کې ژوند کوي، بايد کوښښ وکړي چې زيات وخت په آزاده هوا کې تېر کړي. د هغه ميرمنې د لمر د رڼا ته ډېر ضرورت لري او د لمر د رڼا څخه د هغه نا او خپل کوچنو د پاره ويټامين ډي اخستلای شي. مګر د سوځونده لمر څخه بايد ځان وژغوري ځکه د حامله ميرمنو پوست ډېر حساوي وژر سوځي.

---

## د مور په هکله

مور آسماني فرشته ده.

«دو ميستر»

لويه بدبختي او د ژوند محروميت مې د مور نه لرل دي.

«عربي شاعر»

ښه مور تر ټولو استادانو او ښوونکو غوره ده.

«ژرژ هربټ»

هغه ښکلي رنګ چې ما لومړی وليدی د مور د سترګو رنګ ؤ.

«لانګ فلو»

ژباړه

# کليمنټين چرچيل

د دې ميرمنې نقش د چرچيل په کارونو او سياست کې دونه مؤثر ؤ چې چرچيل په وار و وار دي په هکله داسې ويلي دي:

«دا هغه زما د ژوند حامي او رفيقه ده که نه وای هيڅکله زما څخه هم نه جوړېده.»

کله چې دوی د ګډ ژوند طرح وکړه نو د لندن په ټولو حلقو او مجلسونو کې دا هنګامه شوه چې دا واده به مرغه دی

دا پيوند که ډېره ادامه پيدا کړي او تر نيم کال به زيات اوږد نسي دا ځکه چې چرچيل د ګډ ژوند وړ نه دی.

سره له دې چې چرچيل د هغه وخت د هر څه نه وړه سړی ؤ او ډېرو ښځو داسې کول چې خپلې لوڼې هغه ته ورکړي، مګر دی د هغه ډلې ځوانانو څخه نه ؤ چې ښايسته انګليسي انجونې د هغه هرکلي وکړي.

وينسټون چرچيل په سياسي مسايلو اخته ؤ. کله چې دی د تجارت د وزير په حيث په کابينه کې وظيفه درلوده دېرش کلن ؤ او يو فعال ځوان ؤ.

چرچيل د کليمنټين سره تر مخامخ کېدو وروسته ډېر فرق وکړ. چرچيل په ۱۹۰۸ کال د کليمنټين د خاله په کور کې چې په لندن کې واقع ؤ د يوې ميلمستيا په ترڅ کې د هغې سره معرفي شو او ډېر ژر ئې پر دغې متواضع او هوښياره نجلۍ زړه بايلود.

کله چې ميرمنې د هغه ځای څخه د انګليسي عنعناتو مطابق لېرې شوې د چرچيل دوستان متوجه شول چې د لومړي ځل لپاره چرچيل و نه کړای شوای چې خپل احساسات خوندي کړي.

د دويشت کلنه کليمنټين تر لو پيوندل انګليسي ورځپاڼو د هغې کلاسيک ښايست او خاکي رنګه غټې سترګې ستايلې.

کليمنټين يوې غريبې کورنۍ ته منسوبه وه چې اديسټو کرات بلل کېده او د خپلې مور او خويندو سره په فرانسه کې اوسېده او کله چې ئې تحصيلات پای ته ورسېده کورنۍ ئې لندن ته ولاړه او د فرانسوي ژبې د محاورې په ساعتونو کې ئې ګډون ورکړ. چې چرچيل هم د هغه کورنۍ د ګډون کوونکو څخه ؤ.

چرچيل د دې کال په دوبي کې خپله معشوقه پر له پسې په هغه کور کې ملاقات کوله چې په کرايه ئې اخستی ؤ کليمنټين به ورسره کښېناسته او داسې فکر به ئې کاوه چې وينسټون د دې حرکات په غور سره ګوري.

چرچيل فکر کاوه چې دا ښايسته پيغله چې په ارمې ی و رای د کليمنټين په نامه پيوندلې ده د ده د پاره يوه مطلوبه ميرمن ده نو په دې ترتيب د دوی تګ او راتګ زيات شو. ترڅو چې واده ئې ورسره وکړ. دې ميرمنې د خپل مېړه سره په هر وخت کې مرسته کوله او هغه ئې وراتلونکي ژوند ته خوشبينه کاوه:

د فدا «خواریکښ» ژباړه

# هنر او علم

## د هغوی شباهت او توپیر

تر ډېر وخته د مشرقي هنر پېژندونکو ترمنځ یو حکم د منلو وړ ؤ هغه دا چې: هنر لکه علم په

واقعیت باندې د انسان د پوهېدلو وسیله ده. مګر هلته علم د مفهومونو سره او هنر د تصویرونو یا په لنډ

اصطلاح د چهرو سره سرو کار لري. د علم روش تعمیم دی د هنر روش تیپ جوړول دی په دغه شکل

سره د دغه حکم منځ ته راوړونکی د روسیې نامتو منقد بلنسکي ؤ.

په حقیقت کې په دې حکم کې

لکه چې لیدل کیږي. کامل او جدي او سم ټکي شته او پر وخت ئې هم د هنر او هنرمند د رول د اهمیت

او مسئولیت د اوږد بیولو د پاره مثبت نقش لوبولی دی.

خو پر دغه حکم کې چې اساسي

تکیه ئې د واقعیت د پوهېدلو د وسیلې په توګه د «علم» او «هنر» یو ځای کول دي دوه

ایراده یا که په بله توګه ووایو دوه ټکي وارد کړی دي چې د هغو

دقیق او جامع کول ضروري ګرځي.

لومړی دا چې: علم د لنشتاین خبره «تر ذهني او شخصي چارو لوړ دی» حال

دا چې په هنر کې هم د واقعیت انعکاس شته او هم هغه څه چې علم د هنر سره یو شی کوي هغه پخپله د هنرمند د درک لیدنې

او تجربې انعکاس دی، یعنې په هنر کې د علم برعکس ذهني او شخصي چارې هم شاملې دي.

آیا دغه ایراد پر ځای دی؟ بلې!

شک نشته هغه کسان چې هنر یوازې شخصي احساس بولي پر حق نه دي، ځکه د هنر

دغه ډول تعریف کول په هنر کې د ذهني اړخ مطلق کول دي. د هنرمند ذهني او عیني اړخ ترمنځ، د دباندې واقعیت د بیان

(که طبیعي وي که اجتماعي) او د عواطفو کتنې، توقع، تجربې روحي اړتیاوو د مخصوص سبک او خاص شخصیت ترمنځ

ژور پیوند شته نو ځکه هنر یوازې د دباندې عیني پدیدو (هغه څه چې تر انساني ذهن دباندې موجود وي - مترجم) بیان

نه دی، یوازې د ځان او ذهن بیان هم نه دی. بلکه د دواړو داسې پیوند دی چې عینیت

پر ذهنیت د مخه دی ځکه که ذهنیت هم مطلق کړو، د «ځان بیانولو» نظریې ته به راوګرځو د هنر د پخو

څخه به مو د واقعیت تکیه ګاه او پایه ایسته کړې او هغه به مو عملاً شنډ کړې وي.

دوهم دا چې: د علم سرو کار یوازې د تعقل، تفکر او منطق سره دی خو د هنر یو روحي منشا

تخیل دی. البته په علمي تعمیمونو او فرضیو کې هم تعقل شته په هر «کلي مفهوم» کې چې موږ ئې د

بېلو بېلو مفهومو څخه جوړ ؤ لکه د (فلسفي دفتر) په رساله کې چې څرګند شوی دی د تخیل پرواز او

خیال څه سهم شته. خو د علم عمده پنسټ پر منطقي حکمونو او مفهومو ولاړ دی حال دا چې په هنر کې د

تخیل رول، فانتزي رول، د هنري خیالي تجسمانو رول او هنرمند ته مهم نقش لري البته خبره دا نه ده

څه چیري په هنر کې د تفکر او تعمیم رول هم شته. هر هنرمند باید

پو متفکر شخصیت وی که‌نه‌او هر
قوی او لیری الو تونکی خیال چی
دژوری پوهی مایه‌ونه‌لری واقعی
هنرمندانی ایجادولای و هر مقد
هنری اثر ته چی وگوری دخیال او
فکر دغه پیوند به په ښه کښی توگه
پکښی وو نی.

د بلینسکی په تعریف کی دغه
ټکی په بڼه تو گه‌ستره، کله‌چی دی

تصویرونه دمفهومونو په‌مقابل کی
او ترکیب جوړونه دعلمی تعمیم په
مقابل کی راپه دی په حقیقت کی د

ذهن او تخیل ونقش ته‌اشاره کوی
او وائی چی علم او هنردهره
الخه‌یوډول ډبولی اوښکاره‌ده.

چی نو موږ دی دیر باریك فکره
متفکر به توگه، مطلب ته متوجه
دی [illegible]

معرفتی الخ ته برجسته کولو
په‌هدف اری خو هغی خلکك چی
مطالب په وچه تو گه‌زده
کوی دهنرمند ذهنی الخ او هنری

تخیل خوار ... او نو هکه دیوه
اثر «خاص او مخصوص» الخ ارد
«هنری والی» خصلت په وهمه

درجه کی ایږدی او هنری
اثر «کلی او عام» الخ
د« وا قعی وا لی»او پساد
«په شکل هغه د دفاع کولو»

خصلت مطلق کوی. پو هنری اثر
باید تر ټولو دمخه هنری اثر یعنی
دقوی هنری خیال زیږنده وی.

ودوسته‌او قضاوت کولای سو چی
آیاد غه هنری اثر او زموږ دعصر
مسئولیت او رسالت ته مثبت جواب
ورکوی که نه؟ شك نسته چی هنری
اثر کولای سی چی ودی مسئولیت

او رسالت ته جواب ورنکړی او
ټولنه هم حق لری په اسی شیوو
سره‌چی خلاقی او آموزنده وی نه

د چی تجربیو ټولنکی عناصر هغه اثر
مردود و شمیری، خو تل باید دیوه
هنری اثر څیړه په منځ کی وی
نه بل څه.

هره واقعه لیکنه، دحقایقو
هر عادی بیان، هر رپوړتاژ هره
کلی باقره، دعامو حالاتو هره
یادونه هنری اثر نه دی. پردی
مسئله به‌عین حال کی باید ټکی

هم زیات کړو چی هنر سره‌به‌یره
پر خپل هنری او منطقی الخ
یوفنی الخ هم لری چی که هغه هم
ضعیفه وی دهنری اثر ارزښت کموی.

**نتیجه:**

۱ـ هنر په واقعیت باندی د
پوهیدلو مهمه وسیله او حربه‌ده

خو هنر په‌عین حال کی دهنرمند
نظره هغه دواقعیت بیان دی او په
هغه کی دواقعیت او دهنرمند دروح
ترمنځ رابطه سته.

هنر په‌عین حال کی محض
ځان بیانول او دهنرمند ذهنی
خودسری نه‌ده. له‌هغه ځایه چی د

هنرمند کتنه او تجربه و هنری
اثر ته شکل ورکوی او دهغه
خصوصیات ورڅا کی نوځکه ددی
کتنی او تجربی څرنگوالی او
پقادی او دسمی او سائیر کتنی او
تجربی دودی دپاره تلاش وهنرمند او ته
اهمیت لری.

۲ـ بیله‌قوی هنری تخیل هغه هنری اثر

امکان‌نلری. دقوی‌هنری تخیل وجود دهنری
قریحی وجود دی. شك نسته چی قریحه
باید دفطرت دموهبت په توگه‌دهنرمند په

روحی شخصیت کی وجود ولری او هغه
نه سوزنده کولای. دفطرت تکامل
نامو ندلی او نارو زلی قریحه لیری

نه ځی نو ځکه باید هغه په ټوله قوت سره
وروزل دغه هغه ټکی دی چی لیکوونکی
کتوروو بلله‌چی دبیلو بیلو هنری مسئلو په

باره کی ئی پرخپلو لیکنو زیات کړی.

---

## پښتو متلونه

او خوړ ئی جوړ کی وبل ئی آس
په‌خدای دا کړی.

✿✿✿

ارزان بی علت نه‌وی گران بی
حکمته.

✿✿✿

بو ډو ډی‌او سی بی کورمه‌اوسی.

✿✿✿

چی باغ ئی لاپښی شی باغوان ئی خوار
شی.

✿✿✿

اغزی له ابل ورمخی ته موی.

✿✿✿

په‌خواری څوك بدنه ایسی په
بی کاری بدایسی.

✿✿✿

تربی عقل دوست هوښیار دښمن
ښه‌دی.



تهیه کوونکی: رحمت الله «مړوند»

مړوند

# ځوانان او اجتماعي چارې

دا یو حقیقت دی چې په ټولنه کې منور ځوانان د اوسني او راتلونکو نسلونو په وړاندې یو لړ مهم او بارزښته مسئولیتونه لري.

دا په دې معنی چې هرڅنګه چې هر طبقه د ټولنې په وړاندې د مسئولیت احساس کوي دغه رنګه ځوانان هم مجبوره دي چې د هغه خاص موقف په خاطر چې په اجتماع کې یې خوره کړې دی د خپلې ټولنې په وړاندې د مسئولیت احساس وکړي.

دا چې مسئولیت یاد دوو څه په دا دي چې پوه شو هغه کوم مسئولیت دی چې د ټولنې په وړاندې یې لري؟ هغه د وظیفې مسئولیت دی نو هر ځوان باید خپله ورسپارل شوې وظیفه په پوره جدیت او لیاقت سره سرته ورسوي څو په دې وسیله په ټولنه کې د کار او زحمت ایښلو څرګند سمبول وګرځي او په دې توګه د یوه ...ني ځوان صفت ځان ته وګټي.

اوس باید وپوهیږو چې واقعي ځوانان کوم کسان دي. واقعي ځوانان هغه کسان دي چې خپل موقف او اجتماعي شرایط یې درک کړي او د هغه په ملاحظه ورسپارل شوې وظیفې په پرمخ بیولو کې په ټینګه نه ستړي کېدونکي ډول سره هاند او کوښښ وکړي، دا ځکه چې د ټولو هیوادوالو د امید سترګې د هغو منورو ځوانانو پر لور کړې دي. نو ځکه باید د هیواد د ټولو بې وزلو او خوارو کښو سره مرسته وشي او هغو ته د دوام داره مرستې لاس ور اوږد شي.

اوس چې زموږ په ګران هیواد کې د ملي قاید ښاغلي محمد داؤد په نیکه اراده جمهوري نظام منځ ته راغلی او د ده په مشرۍ د نوي نظام حکمفرمائي د هیواد د ټولو خلکو ته د یوه روښانه ژوند زیری ورکوي همدا وجه ده چې د ځوانانو مسئولیتونه هم په دې نوي نظام کې درنیږي. لازمه ده چې یو بل ته د اتحاد او اتفاق لاسونه سره ورکړو او په ګډه سره د دې نوي نظام تر بیرغ لاندې د هیواد د اعتلا، پرمختګ او هیوادوالو د خدمت له پاره شپه او ورځ زیار وباسو.

د نوي نظام د پاښت او بقا د پاره د هیواد په ګوټ ګوټ کښې د ځوانانو بې ساري هرکلي دا حقیقت روښانه کوي چې د هیواد وطن پرسته ځوانان د خپل ځوان جمهوریت سره د خپل ژوند تر وروستۍ سلګۍ پورې ولاړ او د ځوان جمهوریت برقراره کېدل د هیواد د اعتلا لپاره یو نیک فال ګڼي ځکه نو د زاړه او منسوخ نظام د هغو ټولو ناوړه چارو او بقایاوو د اصلاح په لاره کې چې د زړه له کومې په پوره صداقت او ځوانمردۍ هڅه کوي او هیله لري چې ګران هیواد ژر تر ژره خپل د ترقي او پرمختګ پړاوونه یو په بل پسې طی کړي.

## ځوان ته

ځوان هغه دی چې د ځوان فکر خاوند وي
نه هغه چې د اوهام په دام بند وي
سل ځوانان دي تر هغه زاړه قربان ـ ي
چې خاوند د نوي رنګ او نوي خوند وي

هغه ځوان چې د وطن په درد سوځېږي
که سل ځله پرمخ لوېږي پورته کیږي
ما تري سل ځله قربان او صدقه کړي
چې د مرګ پر پوله ناست وي لا خوځیږي

«لایق»

ژباړه

# د ځوانانو د پاره روحي بحث

کله کله د ځوانانو ژوند له ته اختلالات او روحي تشويشات څخه کوي چې زياتره ځوانان

له دې ناحيې څخه د زياتو مشکلاتو سره مخامخ او په دې روحي ناروغۍ مبتلا ځوانان تل د يأس او نا اميدۍ

سره لاس او ګرېوان وي

په دې ځای کې دا پوښتنه پيدا کېږي چې د څه ډول نابېره پديدې

د څه څخه پيدا کيږي؟ او د څه ډول تشويشونه د څه ډول چرت وهلو محصول بلل کيږي؟

په لومړي سر کې باید په ټولنه کې د ځوانانو د بې ځایه او خطرناکه چرت وهلو علت او انګيزه و پلټو

څنګه همدا محيط دی چې د ځينو مشکلو د پيدا کېدو سبب ګرځي خو بايد ووايو چې محيط عبارت

دی له چاپېريال، کور او ټولنې استوګنې او ګرځېدو له ځايه څخه.

اوس نو د دغو ذکر شوو ځايو څخه په هر ځای کې چې د ژوند له شرايط برابر نه وي نو د هغه

محيط په غېږ کې روزل شوي ځوانان په ډول ډول روحي ناروغيو اخته کيږي د مثال په ډول که د

چاپېرونګی محيط او هغوی د ځوانانو پر ذهن باندې منفي اثر کوي همدا رنګه که د کورنۍ ژوند شرايط

محدود او متکامل نه وي طبيعي ده چې د دغې کورنۍ کوچنيان او ځوانان روحاً تهديديږي.

همدغه علتونه دي چې د هر رنګه اختلالاتو او تشويشونو زېږنده دي.

ځوانان لا د چوونې او تشويق ته زيات اړتيا لري، دا وجه ده چې ځوانان يو سالم او آرام محيط

او روحي تقويې ته زيات محتاج دي.
ځوانانو ته د پوره تشويق اسانتياوو د برابرولو په څنګ

کې، يوه مهربان پلار او مور ته هم ډېره اړتيا لري، که چېرې ذکرشوي شرايط د امکان تر حده

پورې ځوانانو ته مساعد شي نو امکان لري چې د ځوانانو روحي تشويشونه د وخت په تيريدو

سره پر مخ ورک شي او په دې توګه به د رواني ناروغۍ د جبه کېدو لپاره يوه دروازه مخلاصه شي خو د پوره تشويقي شرايطو

د نه مساعد والي په صورت کې به د ځوانانو روحي تشويشونه نور هم زيات شي.

---

## جمهوري پلوشې

وطن او ټولنه د ځوانانو څخه فعاليت او حرکت غواړي ځوانان او

زلميان بايد د جمهوري نظام په رڼا کې معقول او ګټور حرکتونه او فعاليتونه سر ته ورسوي.



ګوندي او تربور ګټوي قدامه او پخواني رژيم بقايا او نښې دي

ځوانانو ته ښايي د عمومي بدبختۍ دغه نښې او عوامل له منځه يوسي او په هېواد کښې د خلکو د نظر او عدل پوروالي ته زمينه مساعده کوي.

مضر او فاسد عناصر نه غواړي چې د هېواد محروم او مظلوم وګړي د جمهوري نظام له مزاياو څخه برخورداره — وګرځي، د اد ځوانانو او زلميانو وظيفه ده چې د مضرو او فاسدو عناصرو سره اخلاقي مبارزه وکړي.

د سردار شاه ترجمه او څېړنه

# مارکوپولو دچین دخاقان په دربار کی

## دده دسفر سړې او تودې او دافغانستان څخه دتیریدو

## په وخت کی دهغه خاطرات

لومړی یوه لنډه کیسه چې مارکوپولو بخپله لیکلې ده دلته رانقلوو.

په ۱۲۰۰ م کال کی چې لا دشپږو کالو نه وم پلار او اکامی نیکولوپولو او میدفیو پولوژ

دمور سره په خپل کورکښې چې په وینس کښې ؤ پرېښودم او دوی بخپله د تجارت په مقصد د

قسطنطنیې و خوا ته ولاړل او دهغه ځای څخه دکریمیا او والګا دصحرا له لارې و مرکزې اسیا

او سمرقند ته ولاړل. په دې چار کښې ؤچې پلار او اکامی دچین دامپراطور (خاقان) ددرباری

نماینده ګانو سره ولیدل. دچین دخاقان امپراطوری دچین دبحر څخه شروع او تر کریمیا پورې

رسیدل. نو دغو نمایندګانو مې دپلار او اکا څخه تر پیوند ګلوی وروسته و غوښتل چې له دوی

سره یو ځای چین ته ولاړ شی څو ددې لارې څخه ډیری پیسې هم

په لاس وړشی. په دې ترتیب پلار او اکامی دچین د درباری نماینده ګانو سره دوو پنځه ورد پښوانی لاری څخه دپیکیانګ

خوا ته حرکت وکی. بیا نو دچین دشمالی صحرا له طی کولو وروسته تبت او وروسته پیکنګ ته ورسیدل.

ترکومه ځایه پورې چې معلومه ده دوی لومړنی اروپائیان دی چې پیکینګ ته تللی دی. تر ۱۲۶۵م دغه هیڅ یو

اروپائی وچین ته نه ؤ تللی. پلار او اکامی ملته پوره ۱۱ میاشتې پاته سول. چې پسله هغه ئې دخاقان څخه د تګ غوښتنه وکړه.

خاقان ورته اجازه ورکړه. او ددوی څخه ئې غوښتنه وکړه چې دده یو ایلچی دروم پاپ ته ورسوی خاقان په دې لیک کښې دپاپ

څخه غوښتی وه چې څو تنه عیسوی مبلغین دچینایی عیسویانو د تدریس دپاره دده دربار ته راواستوی.

پلار او اکامی تر ۱۲۶۹ پورې وینس ته راغلل. په دې وخت کې زه د پنځلسو کالو شوی وم او مور می هم د پلار

په غیاب کې له نړۍ سترګی پټی کړی وی کله چې پلار او اکامی (نیکو پولو- او میدفیو) داورسیدل نو ددوی

لومړی کوښښ دا ؤ چې څو تنه مبلغین دپاپ په وسیله پیدا کړی

خو دا کار دهغه وخت دپاپ دمړینې په اثر یو څه وځنډیدی. څو بیرته په ۱۲۷۱م کی دچین دسفر دپاره

وسایل اماده سوه دعیسوی مبلیغینو سره یو ځای دچین په خوا وخوځیدل او ددې پلاوی زه هم ورسره ملګری

کړم. دغه سفر ۳ کاله او ۲ میاشتې دوام وکی څو پیکینګ ته ورسیدو په دې وخت کی زه ۲۱ کلن شوی

وم. دخارجی ژبو دزده کړې استعداد مې څه ؤ چې په دې لحاظ مې مغولی ژبه په ډیرلږ وخت کی

زده کړه. دخاقان سره زما روابط ورځ پر ورځ ښینګ سوه تردې اندازې چې وملکی چارو ته ئی و ګمارلم.

او دچین په داخل او خارج کی ئی څینو اوږدو سفرو ته واستولم- څو به پای کې د یوه لوی ښار

دوالی په حیث وټاکل شوم. پلار او اکامی هم په دې وخت کی د تجارت

لەلارې دې پرې پسو خاوندان شوي وه، نو هغه وو چې دوی د چین په دربار کې تر ۱۵ کالو تیریدو وروسته

خپل هیواد ته د ستنېدو نیت وکړ او د خاقان څخه یې اجازه وغوښتل مګر خاقان و نه منل او دوی ته یې

وویل چې پنځه کاله به نور هم دلته اوسئ. په دې ترتیب نو هغوی پوره ۲۰ کاله په چین کې تیر کړه.

خو دا چې خاقان موږ ته د تګ اجازه را کړه شرط یې دا وو چې موږ باید یوه پېغله د خپل ځان سره

و «ابل خان» ته رسولې وای (ابل خان د خاقان د خور مشر زوی وو او د خاقان د امپراطورۍ پر

مستعمرو باندې چې ایران هم پکښې شامل وو، حکومت کاوه او د پېغله چې موږ د ځان سره

راوستلې وه باید د ابل خان سره یې واده کړی وای) نو ددې شرط له مخې سره مو چین پرېښود

په عزم پر پښوی. خو دا پلاو پخو لەلارې و سوماترا او د هغه ځای څخه هند او د هند څخه د فارس

د خلیج و خوا ته راغلي سوو. دا سفر دوه کاله وخت و نیوی. پس له هغه چې پېغله مو ابل خان ته تسلیم

کړه، نو خپل سفر ته مو دوام ورکړ او په ۱۲۹٤ کې حرکت وکړ خو په لار کې د یوې جګړې له امله

چې د دوو مملکتو ترمنځ پېښه وه په یو ځنګل کې بندیان او یوې بندیخانې ته یووړل سوو په بندیخانه کښې د یوه بل بندي

سره چې «راستی کولو» نومیدی معرفي سوو دی بودپرهی خاوند وو. کله چې ما د خپل ژوند د پېښو، نو د واو سفرونو د

خوارېو او تکالیفو کیسې ورته کولې، هغه زما د ژوند کیسې د یو کتاب په شکل لیکلې.

دادی د مارکو پولو د ژوند کیسه چې د ماجراوو او کذارشاتو څخه ډکه ده دلته به په لنډ ډول رانقلوو:

## هغه واقعات چې مارکو پولو ئې سفر ته تحریک کړ

څرنګه چې موږ ذکر کړل نیکولو پولو او میدفیو پولو په ۱۲۶۰م کال په قسطنطنیه کې ژوند کاوه ــ او اصلاً یې کورنۍ د (سوداک) په ښار کښې وه او دا ښار جنوبي

روسیې ته نږدې وو. نو په دې خاطر دا ښار د مغولانو د پوره سوداګرۍ او تجارت لوی بازار وو. څرنګه چې نیکولو پولو

او میدفیو پولو د جواهراتو سوداګران وه، نو دوی نه شو کولای چې خپل جواهرات په (سوداک) کښې خرڅ کړي ځکه

هلته امنیت نه وو او هر وخت به سوداګران د چورداو چپاو سره مخامخ وه. تر پېښې اساس دوی د را الګا ډیار وخوا ته ولاړل

چې هلته بیا «برکه خان» چې د چنګیز خان د کورنۍ څخه وو حکمراني کوله. څرنګه چې «برکه خان» غوښتل خپل تجارتي

روابط د غرب سره زیات کړي نو ده د پولو کانو جواهرات په ډېره لوړه بیه ځنی رانیول ــ چې ددې خرڅلاو له کبله

نیکولو پولو او میدفیو پولو ته دا فکر پیدا شو چې باید د هغه لارې څخه چې راغلي وه بېرته لاړ سي خو څرنګه او پیسې خپل وطن ته ورسوي، مګر بې امنۍ او د لارې

خرابوالی د دوی د حرکت مسیر ته تغیر ورکړ. دوی د خپل سفر په لار کې داسې ځای ته راغلل چې

د دوو مغولي پاچاهانو «برکه خان» او «هلاکو» ترمنځ جنګ پېښ وو او د دوی جنګ د تجارت او تګ

راتګ لارې بندې کړې وې، نو دوی دې ته مجبوره سول چې هغه لارې پرېږدي او د شرق لارو پسې واخلي

څو هغه لارې بخارا او د هغه ځای څخه د فارس خلیج ته ځانونه ورسوي. په دې ترتیب دوی بخارا

او د هغه ځای څخه (برک) ته چې د افغانستان په شمال کې پروت دی ورسېدل. په برک کښې یې بیا ډېرې

ګڼې وکړې؛ و نیت یې وکړ چې د هغه ځای څخه فارس ته ولاړ شي مګر د لارې د خطرو څخه یې بیره

درلوده، خو بېرته بخارا ته راغلي سول او هلته دوه کاله نور پاته شول، او د مغولي ژبه یې هم هلته

زده کړه. په ضمن کې یې د مغولانو د ژوند طرز سره اشنایي پیدا کړل دا نو هغه ځای دی چې دوی

د چین د امپراطور د یوه دربار نمایندګانو سره پېژندنې او تشویق وي یې چې باید دوی سره چین ته ولاړ

سي څرنګه چې دوی دې کال و په دوه کې د مغولانو سره ښه پوره اشنایي پیدا کړې وه نو هغوی چې

د هغو سره د چین پر لور رهي سول. ددې علاقه په دې سفر کې دا وه چې یو خو به چین وویني او بل دا چې هلته به زیاتې پیسې هم

وګټي. هغه وخت چې دوی چین ته ور سېدل او هلته د امپراطور (قوبلای خان) د چه وضعیت او

صمیمیت سره مخامخ سول دوی ۱۱ میاشتې د قوبلای خان په دربار کې تېرې کړې او بیا ئې وطن ته

د ستنېدو اجازت وغوښتې. قوبلای خان ددوی څخه د هغو تنو عیسوي مبلغینو غوښتنه وکړه چې چین ته ئې ور

واستوي.

کله چې دوی حرکت کاوه قوبلای خان د هغه وخت امپراطور

ددوی سره څو تنه عسکر بدرقه کړل څو دوی تر یوه ځایه پورې ورسوي. قوبلای خان دوی ته

د پاپ د پاره یو خط هم ورکړی چې په هغه کې ئې د عیسوي مبلغینو نه علاوه د مقدسو تېلو غوښتنه هم

کړې وه.

او هم یې دوی ته یوه داله د سرو زرو څخه جوړه کړې وه چې د یوه

پاسپورټ په قسم وه یعنې که به دوی دا څخه وهر چا ته ور ښکاره کړه هغه به دوی ته لار ورکول او هم به

یې ددوی څخه پوره عزت او مهمان داري کول څکه پر دې څخته باندې چې یو فتي او هده: وددي انچه بند وه دغه

جمله لیکل سوې وه:

(... هر چا که ددې څخې د وړاندې احترام ونه کړ، سر به یې

له تنه څخه جلا سي.)

دوی د بخارا له لارې افغانستان او بیا ایران او د هغه ځای څخه سوریې ته چې هغه وخت (لایاس)

ورته ویل کېده، راورسېدل او له هغه ځای څخه ئې په کښتۍ کښې ځان روم ته ورساوه کله چې کور ته ورسېدل وئې لیدل چې د ایکو

مایښه کلونه پخوا مړه شوې ده او کوچنی زوی ئې ۱۵ کلن سوی و او هم ئې واورېدل چې (پاپ کلمینت) مړ سوی دی.

روحانیونو د عقیدو د اختلاف په سبب رومیان موفق نه شول چې تر دوو کالو پورې بل پاپ مقرر کړي او څکه ددې

ونه سو کولای چې مبلغین د ځان سره یوسي هغه وخت چې بیله مبلغینو په ۱۲۷۱ کال کې بیا چین ته رهي سول او ددې وارئې

مارکوپولو هم د ځان سره ملګری کړ. اوس چې دوی عیسوي مبلغین هم د ځان سره نه وه ملګري کړي او باید د قوبلای

خان قول ئې پر ځای کړی وای څو دا چې عیسوي مبلغین نه شوه پیدا، باید مقدس تیل ئې حتماً د ځان سره اخستي وای. هغه

وخت ددې مقصد د پاره دا کرا له لارې وفلسطین ته ولاړل. په دې ځای کښې په یوه کلیسا کې یو څراغ لګیدی چې

د خلکو په قول دا څراغ د حضرت عیسی (ع) په وخت کې لګیدلی و او تر ډېره وخته پورې هغسې بل پاتې و او ددې څراغ تیل

د مقدسو تیلو په نامه یادېدل چې خلکو به هغه په ډېر تکلیف او د ډېرو پیسو په مقابل کښې لاس ته راوستل او د ځینې مرضو

د علاج د پاره به ئې استعمالول. نو دا خبره د قوبلای خان تر غوږ پورې رسیدلې وه څکه ئې ددې تیلو غوښتنه کړې وه. خو

پولو دوی هم ددغه تاز پر څکه ورله بیاوه او تر ډېر تکلیف وروسته ئې یوه اندازه تیل را واخستل او د چین په لور رهي شول

اما پر لار یې واورېدل چې نوی پاپ مقرر سوی دی. نو بیرته راوګرځېدل او پاپ دوه تنه مبلغین د یوه لیک سره ددوی سره واستول. هغه وخت چې

دوی د ایران د لارې بیا مخ پر چین رهي سول خو په لار کښې د ډېرو خطرونو سره مخامخ شول. خصوصاً

د هغه جنګو څخه بېره ډېره وه چې د عباسي خلیفه ګانو او مغولو ترمنځ مېنښتې وه. مګر پولو ددې

د پاره چې خپله وفاداري قوبلای خان ته ښکاره کړي هر ډول خطرونه ئې ومنل او خپل سفر ته ئې

دوام ورکړ. د (لهاسا) د لارې وارزروم او د هغه ځایه تبریز کرمان او افغانستان ته راورسېدل نو ئې

دور ونه لار په خوله ورکړه. څو ځانونه ئې پیکنیګ ته ورسوي.

مارکوپولو که څه هم په

دې وخت کې کوچنی و خو بیا هم ډېر هیرک او هوښیار هلک و. هر څه چې به ئې لیدل په نظر ورتلل

په ډېر غور به ئې تر مطالعې لاندې نیول - او هر داورېدو شی به ئې په پوره دقت اورېدې.

هغه شیان چې د مارکوپولو د پاره نوي وه هغه د نوح (ع) د کښتۍ او اژدها او د عباسي خلیفه ګانو

شکست او په بغداد کې ددوی عام قتل و چې مارکوپولو ډېر شیان په دې باره کښې لیکلي دي او د

مغول نیز کر کول د لته لازم نه دي.

«نور بیا»

# د مضامینو فهرست

